# پښتو پښوېـه ( گــرامــر )

# PASHTO GRAMMAR

دويم لاسوهلی ازمېښتي چاپ

پوهندوی دوکتور مجاور احمد زيار

Dr. M. A. Zyar



ادب پوهنځی

د ۱۳۵۷ وری

## نیو لیک (فهرست)

| سرلیک | مخ |
| --- | --- |
| یادښت | الف |
| پښویه (گرامر) | ۱ |
| لومړۍ برخه ـ غږ پوهه (فونو لوژي): | ۱ |
| دویمه برخه ـ گړ پوهه (مورفولوژي): | ٦ |
| تـوم گړ پوهــه | ٦ |
| نوزي (جنس) | ۷ |
| پیر (حالت) | ۱۰ |
| ناوښتونی نومونه | ۱۲ |
| څیز نوم (اسم) | ۱۳ |
| ستاینوم (صفت) | ۱٤ |
| شمیرنوم (عدد اسم) | ۱٦ |
| نومځري (ضمیر) | ۱۸ |
| ځانگړي نومځري (شخص ضمیرونه) | ۱۸ |
| تولنو ځري (ملکی ضمیرونه) | ۱۹ |
| نغوتومځري (اشاري ضمیرونه) | ۱۹ |
| پوښتنو ځري (استفهامی ضمیرونه) | ۲۰ |
| وییکو ځري (اداتی ضمیرونه) | ۲۱ |
| اړیکو ځري (ارتباطی ضمیرونه) | ۲۲ |
| غبرگون نومځري (انعکاس ضمیرونه) | ۲٤ |
| ناټیکو ځري (ابهامی ضمیرونه) | ۲٤ |

| سرلیک | مخ |
|---|---|
| ګډ تولنومځري ( اشتراکی ضمیر ) | ۲۷ |
| تول ـ ځانګړي نومځري ( شخصی ـ ملکی ضمیرونه ) | ۲۷ |
| لومړي کړ اوونه ( تمرینونه ) | ۳۲ |
| دویم کړ اوونه ( تمرینونه ) | ۳۳ |
| دکړ ګړ پوهه یا دفعل صرف | ۳٤ |
| کړ نوموونکی ( مصدر ) | ۳٤ |
| دکړ اوړ ونی توکونه اوار خونه | ۳٥ |
| اوړ ونونه ( ګردانونه ) | ۳۹ |
| د تیرمهال کړ اوړ ون | |
| روز دنی تیرمهال ( اعتیادي ماضی ) | ٤۱ |
| لنډ تیرمهال ( قریبه ماضی ) | ٤۲ |
| لرتیرمهال ( بعیده ماضی ) | ٤۳ |
| ګومانی تیرمهال ( احتمالی ماضی ) | ٤٤ |
| ارمانی تیرمهال ( تمنایی ماضی ) | ٤٥ |
| اړ وتی تیرمهال ( شرطی ماضی ) | ٤۷ |
| توانی تیرمهال ( امکانی ماضی ) | ٤۸ |
| ټینګاري تیرمها ل ( تاکیدي ماضی ) | ٤۸ |
| هیښنی تیرمهال ( تعجبی ماضی ) | ٤۹ |
| پوښتنی تیرمهال ( استفهامی ماضی ) | ٤۹ |
| نالیزند کړ ( لازمی فعل ) | ٥۰ |
| بشپړ تیرمهال ( مطلقه ماضی ) | ٥۰ |

| سرلیک | مخ |
|---|---|


| | |
|---|---|
| خبري تیرمهال | ۵۰ |
| لنـډ | ۵۰ |
| لـر | ۵۱ |
| نابشپړ | ۵۱ |
| روز دنی | ۵۱ |
| ارمانی | ۵۱ |
| توانی | ۵۳ |
| گومانی | ۵۳ |
| ټینگاري | ۵٤ |
| پوښتنی | ۵۵ |
| اړوتی | ۵۵ |
| د اوسمهالکړ اوړون | ۵٦ |
| بشپړ اوسمهال ـ خبري | ۵٦ |
| اړوتی | ۵۷ |
| ارمانی | ۵۷ |
| پوښتنی | ۵۷ |
| هیښنی | ۵۷ |
| توانی | ۵۸ |
| امري | ۵۸ |
| ټینگاري | ۵۸ |
| غوښتنی | ۵۹ |

| سرلیک | مخ |
|---|---|
| گومانی | ٥٩ |
| نابشپړ اوسمهال | ٥٩ |
| اړوتی | ٦٠ |
| ارمانی | ٦٠ |
| پوښتنی | ٦٠ |
| هیښنی ــ گومانی ــ توانی ــ امري ... | ٦١ |
| نالیزند ( تل ــ ) ــ بشپړ اوسمهال | ٦٢ |
| خبري ــ اړوتی ــ ارمانی .... | ٦٢ |
| نابشپړ اوسمهال | ٦٣ |
| خبري .... | ٦٤ |
| د اوسترمهالکړ اوړون ( د مستقبل فعل گردان ) | ٦٥ |
| نالیزندځ ــ ولاړ ــ | ٦٥ |
| دکړ رغاونی ( ساختمانی ) بڼولونه | ٦٦ |
| یوستوي ــ بیلښتی ( ساده ــ اشتقاقی ) | ٦٦ |
| خواپرخوا ( سست ترکیب ) | ٦٧ |
| ترښتی ( ترکیب ) | ٦٨ |
| دویمه برخــه : | ٦٩ |
| ناوړیدونی گړونه | ٦٩ |
| کړولونه (قیدونه) | ٦٩ |
| وییکی ( ادوات) | ٧١ |

| سرلیک | مخ |
|---|---|
| اړیکوییکی ــ ورتنی وییکی ــ تړوییکی | ٧١ |
| تولوییکی ــ سرلونه | ٧٢ |
| ٣ـ کــــــړاوونه (تمرینونه) | ٧٨ |
| ٤ـ کړاوونه | ٧٩ |
| دپښتو ګړونو انځورلیک | ٨٠ |
| دریمـــه برخــــه : | |
| غونډله پوهه (نحو) | ٨١ |
| غونډله (جمله) | ٨١ |
| دغونډلی جوړښت | ٨١ |
| دغونډلی رغنده توکونه | ٨٥ |
| اوډون (ترتیب) | ٨٧ |
| دغونډلی بشپړ اند توکونه (اهنګ ــ خج ....) | ٨٨ |
| دایښی اوایښونی سمون | ٩١ |
| نوموړاله اوکړواله غونډله | ٩٣ |
| دغونډلی مانیز ډولونه | ٩٤ |
| دغونډلی جوړیز ډولونه | ٩٥ |
| یوستوي غونډله | ٩٥ |
| غبرګغونډله | ٩٦ |
| ګډه غونډله | ١٠١ |
| ګډلی غونډله | ١٠٣ |

| سرليك | مخ |
|---|---|

| | |
|---|---|
| گړنې ( اصطلاحات ) | ۱۰۵ |
| غونډه له پوهېزه شننه ( نحوي تجزيه ) | ۱۰۷ |
| ګړاوونه | ۱۱۵ |
| نوې نوموونې | ۱۱۷ |
| ربې پانګه | ۱۳۲ |
| اخځليك | ۱۵۷ |

## یادښـــــــت

د نوي او زاړه ترمنځ یوه نه شلېدونکې شخړه یو دیالکتیکي قانون دی . هر زوړ شی او پدیده په خپل ځان کې د ننه د یوه ورسره نوي اړ پېچ (ضد) زېږي روزي او په همدې دود او دوی د وګړنې ټولنې بشپړتیا یې بهیر مخ پر وړاندې د روښ اولـــه دې سره یې انداویوهه . په دې توګه له مهال تېرېدنې او ځانګړو ځانې او جهانې اړونو سره سم بشري پوهنه تل بدلون او نوي کېدون مومي او همدغه بدلون او نوي‌کېدون یـــې بشپړتیایي تګلوري ورسیخوي .

زموږ په وروسته پاتې ټولنه کې د نورو بشري پوهنو په لړ کې ژبپوهنه هم نســوي دودېدونکې ده او زموږ له ټولنیزو اړونو سره سم یې یو رنګ لاسم دود نه وي موندلـــی چې په نوره نړۍ کې هغه بیا دوخته زوړ وي . که څه هم لږ ترلږه شل کاله پوره کېدونکي دي چې نوي ژبپوهنې د ادبپوهنځي له لارې زموږ هېواد ته سرراد ننه کړې خو بیا یـــې هم نه یوالحس د زړې دودیزې ژبپوهنې او ښوونې ځای نه دی نیولی چې لاکوږې یې ټرې ســـر هومره هم نه دی مسک کړی .

د عبدالاحد یاري د نوي ژبپوهنې څولوستونه او لیکنې لا د شاګردانو مغزو ته سمې نه وې رسېدلې چې د رښتین ژبښودنې بیا ټول افغانستان نیولی وکه له الهامه تېرشو ، د پښتو ځانګې پازوال استاد شاکر د نوي ژبپوهنې د پیښناوو په توګه نه د ومره اکاډمیکـــه زده کړه او سمبالتیا د رلوده او نه یې ورسره لږه کې زړ ورتیا چې هغه زړه ژبښودنــــه لږ ترلږه له پوهنځي څخه وباسي . ده چې د ژبپوهنې مؤسس او پښتو ځانګې د ژبنیو څېړنو او ښوونې بشپړ مونوپول یې په لاس کې وله (( فونیم وخه ته وایي ــ مورفیم وخـــه ته وایي؟ )) پرته نه نور څه زده وو او نه یې تر هغه زیات څه وړاندې کړای شـــول .

نو په دي توگه به ترې پخپله د پښتو ژبپوهنې یا پښتو پښوونې په باب څه هیله شوي واي ۰ د تېزي نوي ژبپوهنې (د پښتو ټولنې د ۱۳۴۴ خپرونې) او د پالوال نوي مصدر (د ادبپوهنځي د ۱۳۵۰ خپرونې) بیا هم زاړه غوږونه یو څه وېښ گول او دا یې لږ تر لږه وښووله چې نوي ژبپوهنه یا پښوونه څه مانا !

ما د ژبپوهنې د یوه نوي زده کوونکي او پښتو گړ د ود څېړونکي په توگه د سویس له زده کړونه له بیرته راستید و سره له زړي ژبپوهنې او زړې ژبښودنې سره یوې مخېزې نه پخلا کید ونکې سرغړاوي ته راود انگل او خپله لومړۍ دنده مې داوبالله چې له پښتوځانگې څخه همدومره د زړې ژبښودنې تغرویلز د ووم لکه کوم کار چې په دري څانگه کې الهام او نگهت کړي دي او ترخپل مسلکي واک او وس پورې د نوي ژبپوهنې په رڼاکې د یوي نوي ښوونځیوالي (مکتبي) پښوونې او ژبښوونې بنسټ هومره کیږد م ۰

زه دا باتي نه وهم چې دغه پښوونه په تیوریک ډول د کوم ډېر تازه او لوکس ژبوهنیز ښوونځي (لکه ترانسفور ماسیونل ـ ژنراتیف گرامر) ښکارندوی گڼلای شي او نه په ملوکي د پښتو یو بشپړ مسپړیز (تشریحي) گرامر او س خو دا په ډاډ وېلای شم چې د ود یز نور ماتیف گرامر هم نه دي ۰ دا چې لیکې او علمي پښتو لا منځ ته نه ده راغلې او هر چا خپله کلیواله او ځانگړي پښتو رامخکې کړېده نو کېدای شي ځینو گوتیوونکو ته زما دغه پښوونه یو نور ماتیف گرامر وایي او څکه ما د نورو پر خلاف ځانته یوا ځینې پښتو امرلي اوغوره کړي د ه او د گرامري د ود ونو (قاعدو) او ټولیو (کتیگوریو) په سپړنه ایستنه او ویشنه کې مې د ټولو پښتو گړ د ود ونو د یوي گډې امرلي (انتخابي) ښې اراو معیار په کار اچولي دي په دي چې د ((پښتو)) گرامر لیکنه او د ((پښتو گانو)) گرامر لیکنه سره توپیر لري ۰

دموخی اومرام له پلوه مازیات دپښتو ټولنې دشاګردانو راتلونکی اړتیا په پام کی نیولی ده ۰ هغه داچی دوی په داسی یوی‌نوی پښتوی سره پرخپل خپل وار پــــه منځنیو او لوړو ښوونیزو ځانګو کی سمدلاسه دزړی ژبښوونی پای‌ته رسیدل اوله دود ه لویدل هومره ونسوولای شی اوبرځای یی دنوي ژبښوونی یوه وزمه هومره خپره کړي داسی نوي ژبښوونه چی هم تخنیکی اومتودیکسی نویوالی لري اوهم ژبنی نویوالی ۰ او زماپه ازمینښت ندي لاسوند چی ماولی دغه دوه اړخیز نویوالی ته پریووار را ودانګل ؛ دادي‌چی یواځی په دي یوه نویـــوالی له زړې ژبښوونی او پښتوی سره مبارزه بیاهم نیمګړې وه ۰د (( حــرف یاتوري ))ـ (( مصدر )) ـ (( فاعل )) او (( مفعول )) غونډې کرغیړنی نومونی چی‌استادیی په ویلو او شاګردان یاشاګردانی یی په اوریدلو شرمیزي نور هماغسی له دوبه او موده وتلی بریښی لکه‌پخپله دزړي ژبښودنی کرغیړن دوداو تخنیک ۰

که څه هم ددې نوي‌غورځنګ دغه دویم اړخ راته داپنځه شپږ کاله دسربه کاسه کی اوبه راکړې اودزړي لیاري پلویانو می دکوټلو لپاره همداپلمه ونیوله خوما هرڅه دیوه ((علمی بري)) په خاطر وزغمل او ټوال می پرځمکه کښی نښود ۰ همدغه زغم اړتینــــګ هوډ اوویلاړو چی تر بریي یی ورسولم او هغه داچی دغه نوي پښتو په می له ټولو نویو نومونو اوترمونو سره هم شاګردانو وسهلای شوه او زده کړای شوه او هم می دشاګردانو شاګردانو ۰ داد بپوهنځی دناپښتو ځانګو او ځینو نورو پوهنځیو لپاره له همدغه ګرامر څخه لوستونــه برابر شول او همداسی یی پسی دهیواد نورو لویرو ښوونیزو مرکزونو ته لاریید اکړه اولا پیدا کوي یی ۰ دملالی لیسی پښتو ځانګی زما له همدغه ګرامر څخه‌یووتلی لوستلیکی کاپی کړ او دهغه لیسی په درسی کتابونو کی یی ورته ځای ورکړ ۰ بی له دي چی زما لــه شاګردانو څخه کوم یوه هلته ښکارندوي کړې‌وي ۰ له دي ټولو خبرو سره سره زه بیاهـــم خپله پښتویه یوه بشپړه اوبی (( خو )) نه بولم اونه یی بوللای شم ۰ هماغسی چی زمـــا

دغه پښتویه دپوهاند رښتین ترژبړونی نوي ده او دهغی ځای یې ونیو همدغس به په ځا پس د دوکتور تزي هم زما ترد ي نوي‌وي اوځای به‌ یې‌نیسی . مقصد یوه‌نویداره هومره می وایستله اوس‌نو هر نوي ژبپوهاند او پښتو پیپوهاند کولای شی بی له کوم سرخوږه د نوي ژبپوهنی دهماغه بیخی نوي ښوونځی په رڼا کی دلازیاتی نوي پښتو ژبپوهنی او پښتوپښویی په باب تازه نوښتونه او نو چارونه وړاندې کړي . نه یوازی په‌ګړ هار بلکی په چار او کړن سره زما د دغوځای ونیسی او په دي توګه دنوي‌نري ځ او نوي پیړ ي ځ له پوهی او تخنیک سره دپښتو اوپښتنو په پیژندوین او روز دیدنه‌کی ترما زیاته ونډه واخلی .

تل دي پرنا پوهی باندي دپوهی بری

اوپرزړ و باندې دنویو لاسبری

پوهندوی دوکتور مجاور احمد زیار

نادرشاه مینه د ۱۳۵۶ دکب ۱۵

سید مسافر

## پښتو ګرامر (ګـــــرامر)

پښتو ګړپوهنې يوه ستره سپړېزه (تشريحي) برخه ده چې په دوديزه توګه پښتونخوا او ژبپوهانو ته ورکړل شوې (کورسونو) کې د پښتو ژبې د زده کړې د معياري ليکنې او لوستلو زده کړې د پاره لومړۍ مسئله ګڼل کېږي، يا په لنډه توګه:

پښتو د ژبې د بېلا بېلو جوليزو توکونو او د دوی ترمنځ اړيکو څخه غږيږي يا په لنډه توګه

ژبنا پښتو ژبې د ژبې د رغاونې (جوړښت) سپړنه (شرح) ده چې دا سپړنه له درو اړخو څخه ترسره کېږي:

۱ــ غږ پوهه (فونولوژي)

۲ــ ګړ پوهه (مورفولوژي)

۳ــ غونډله پوهه (سينټکس)

### لومـــــړۍ برخـــــه

### غږپوهه (PHONOLOGY)

غږپوهه په ټوليزه توګه د ژبې لومړني ساده توکونه (غږونه) کتي او څېړي او په لنډه توګه پر دوو څانګو وېشل کېږي:

۱ــ اوازپوهه (فونيميکس)

۲ــ سپړپوهه (فونيټيکس)

اوازپوهـــــه: اوازپوهه د ژبې ارزښتناک غږونه (اوازونه) ترڅېړنې لاندې نيسي.

اواز: (فونيم) هغه داوريدو وړ سپړ غږ دی چې د غږيزو غړو او ساهوا په مرسته پر ووار له خولې راوځي پخپله کومه مانا نلري خو په وييونو (کلمو) کې مانيز توپير پيښوي نکه پور او تور چې د يوه اواز په بدلولو سره دوه بېلا بېل وييونه دي.

سپړپوهـــــه: سپړپوهه د ژبې ټول غږونه يا سپړونه که ارزښت ولري يا ونلري يومخيز ترڅېړنې لاندې نيسي د ساري په توګه (د) د پښتو يو ارزښتناک غږ (اواز) دی خو په وين

یاځینې کې له راز راز دریځ (موقعیت) سره بیلابیلې بڼې ځانته غوره کوي . د اسې چې وینګ (تلفظ) یې دوې یا څې په یوه برخه کې زور وروي او په بله کې کمزوري یانیم کمزوري لکه په (دود) کې چې لومړي (د) تر دویم هغه غښتلی ویل کیږي اود ویم . بیخې د (ت) وینګ ته نږدې کیږي . نود فونیتیکس له پلوه پرلومړي دویم او ... (دالونو) ویشو او د فونیمیکس له پلوه یې دهماغه یواځینی (دال) په توګه پیژنو .

په دې توګه هره ژبه یو ټاکلی شمیر اوازونه لري خو سپښونه یې هرځومره کیدای شي .

د پښتو اوازونه : یوه یواځینی ګڼه لیکی معیاري پښتو ټول ۳۶ اوازونه لري چې پرڅلورو ډلوویشل کیږي :

۱ـ ځپلواك (واول) چې راپیداکیدل یې بې له کوم ستر هوایی بندیز څخه ترسره کیږي او شمیریې اووه رسیږي .

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| زور | a | لکه | سر | sar |
| زورکی | ə | لکه | تره | trə |
| الف | ā | لکه | کار | kār |
| اوږده ي | e | لکه | ادي | ade |
| لنډه ي | i | لکه | ښادي | ṣādi |
| اوږدو | o | لکه | اور | or |
| لنډو | u | لکه | سور | sur |

۲ـ بیواك (کنسوننت) چې له راپیداکید و یاله خولې څخه دراوتو پروخت د ساهوا له بندیز سره مخامخیږي اوشمیریې (۲۷) ته رسی .

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ب | (بې b) | لکه | بر | bar |
| پ | (پې p) | لکه | پور | por |
| ت | (تې t) | لکه | تور | tor |
| ټ | (ټې ṭ) | لکه | ټول | ṭol |
| ج | (جې j) | لکه | جوړ | joṛ |
| ځ | (ځې j̃) | لکه | ځوړ | j̃waṛ |
| څ | (څې c) | لکه | څار | c̄ar |
| چ | (چې č) | لکه | چار | č̄ar |
| خ | (خې x) | لکه | خول | xol |
| د | (دې d) | لکه | دود | dod |
| ډ | (ډې ḍ) | لکه | ډاډ | ḍāḍ |
| ر | (رې r) | لکه | زور | zor |
| ړ | (ړې ṛ) | لکه | ړوند | ṛund |
| ز | (زې z) | لکه | زر | zər |
| ژ | (ژې ž) | لکه | ژر | žər |
| ږ | (ږې ẓ̄) | لکه | ږيره | ẓira |
| س | (سې s) | لکه | سم | sam |
| ش | (شې š) | لکه | شل | šəl |
| ښ | (ښې ṣ̄) | لکه | ښل (زينه) | ṣəl |
| غ | (غې ğ) | لکه | غرمه | ğarma |
| ک | (کې k) | لکه | کر (کښت) | kar |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| گ | (گې g ) | لکه | گر (ظلم) | gar |
| ل | (لې l ) | لکه | لار | lār |
| م | (مې m ) | لکه | موړ | moṛ |
| ن | (نــن n ) | لکه | نن | nən |
| ڼ | (ڼــې ṇ ) | لکه | بڼ | baṇ |
| هـ | (هې h ) | لکه | هلك | hal k |

۳ـ نیمواك (نیم واول) هغه اوازونه دي چې دخپلواکو او بیواکو دواړو دنده پرځاي کوي یاپه بله وینا که په یوه څپه کې دزړي یاهستی (حرکت) کارورکړي د خپلواك بڼه غوره کوي که نه دبیواك . په ترتیب سره لکه په بیل bel اوبیا byā کــس . دنورو خپلوانو ژبو غوندي پښتو هم دوه نیمواکلري :

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| و | ( w ) | لکه | ور | war |
| ي | ( y ) | لکه | یور | yor |

٤ـ غبرگغبزونه ( دیفتونگونه ) هغه اوازونه دي چې دخپلواکو اونیمواکو په ملگرتیا منځ ته راځي اولکه پوستوي اوازونه یووارپتـلیز (پیوسته) له خولې راوځي . دیوه غبرگغبز لومړي توك یو خپلواك او دویم توك یې یو نیمواك اوازوي اوداچې پښتو نیمواك اوازونه دوه دي نویه دې توگه یې یو ډول غبرگغونه په و ( w ) جوړیږي اوبل ډول یې په ي ( y ) چې ټول شمیر یې یوولسوته رسي .

لومړي ـ دي ( y ) غبرگغبزونه :

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| نرمه یازورواله ي | ay | لکه | سړی | saṛay |
| اي | y | لکه | ځاي | zā y |
| درنه یازورکي والی ئ | y | لکه | مړئ | maṛ y |

| ږي | oy | لکه | زوي | zoy |
|---|---|---|---|---|
| وي | uy | لکه | بوي | buy |

دويم — د و ( w ) غبرگږونه :

| او | aw | لکه | لو | law |
|---|---|---|---|---|
| أو | w | لکه | کټـو | kaṭǝw |
| او | üw | لکه | پړاو | paṛüw |
| او | ow | لکه | اوري | owrǝy |
| يو | ew | لکه | ليو (گاه گل) | lew |
| يو | iw | لکه | تريو | triw |

 څپـــــه : څپه ، هجا يا سيلابهغه اوازغونډ ( فونيمي گروپ ) دي چې يا يو خپلواك وي اويا له يوه خپلواك او يوه يا څو بيواکو څخه جوړ وي اوپه يو ځايـي ډول له خولې راوځـي، لکه په ( آدم ) کې چې دوه زږي (خپلواکه) لري لومړی څپه ( ألف ) اودويمه ( دم ) ده يا شخوند sxwand چې يوزږي ( a ) لري اوپنځه بيواکه تو يوه او ز ده څپه گڼـل کيږي ۰ څپه هرو مرو مانا نلري د ساري په توگه کور هم يوه څپه ده او هم يو ويـي ځکه مانا لري مگر ( اـغي ـ زه ) په اغيزه کې دريواړه څپې ځانته جلا جلا مانا وي نلري ۰

خج يا فشار ( اکسينت ) : خج هغه چار (عمليه) ته وايي چې د ږبيـــــــر تو کونو په لړ کې يو ترك په زور او شدت سره وويل شي ۰

په دې توگه خج په درو ډولو ويشل کيږي :

غونډاله ييز ( جملوي ) خج — وييز (لغوي ) خج او څپييز (هجا يـــي )

خج لکه په ( زه پوهنتون ته ځم zǝ pohanṭun ta jǝm. ) کې يو غونـــډ

له ييز خج راغلی او هغه هم پر ( u ) اوپه يوه وخت کې وييز خج هم دي ځکه د

غونډلي د نورو ويينو په ترڅ کې يواځې د (پوهنتون) وي خج اخيستى او هم ځپيزخج دي

ځکه د پوهنتون د دري ګونو          ځپو په ترڅ کې يواځې يوې ځپې

خج تر لاسه کړي دي .

## دويمــــــه برخــــــه

## ګړ پوهـه (صرف Morphology )

ګړ پوهه د پښتو هغه برخه ده چې د ګړونو (مورفيمونو) له رغاونې اوړون (ګردان)

او د هغو له ټولونو (ډولونو) سره کار لري .

ګـــــــړ : ګړ هغه کوچنۍ د انيز ژبنى توک يا مانيز يوون (واحد) دي چې که وشنل شي

اوازونه تري لاسته راځي او په دې توګه خپله مانا له لاسه ورکوي .

ځانګــــــې : ګړ پوهه د ګړونو د ډولونو له مخـــې په دوو ځانګو وېشل کيږي : يوه

د اوړيدونيو (ګردانيدونکو) ګړونو ځانګه او بله د نا اوړيدونيو ګړونو ځانګه . د اوړيدونيو ګړونو ځانګه بيا دوې برخې را اخلــــې :

١ـــ نوم ګړپوهــــه .
٢ـــ کړګړ پوهه .

نوم ګړ پوهه :

په نوم ګړ پوهه کې د نومونو ډولونه او د هغه اوړونونه (ګردانونه) څيړل کيږي .

نـــــوم : هغه ويې دي چې بې له زمانې اړيکې (دکړ په توپير) د راز راز څيزونو

او ښکارند و (پديدو) څرګند ونه کوي لکه تيزه ، لرګى ، سړي ، سړيتوب ، ښايست ، روغ ، روغتيا ،

روغوالى ، زه ، ته ، دي ، يو ، دوه ....

د نومونو ډولونــــــه :

نومونه پر څلورو ډلو (ګروپونو) وېشل کيږي :

١ـ څيزنومونه (اسماء) .

۲ــ ستاینو مونه ( صفات ) ۰

۳ــ شمیرنومونه (اعداد) ۰

٤ــ نومځیري (ضمایر) ۰

دنوم او پړون اړخونه :

نومونه په تولیز ډول د درو اړخو (وجوهو) له مخې اوړون مومي لکه نوزي ،
ګڼه ، پیر ، خر ځلورم ډول (نومځري) یې پرهغو سربیره د یوه بل اړخ (وګړي) له مخې
هم ګردانیږي ۰

۱ــ نوزي (جنس) چې نوم نرینه دي لکه ګیدړ ، سور اویا ښځینه لکه ګیدړه ـ سره ۰

دنومونه نوم نښې : داورووسته نومونه زیاتره نرینه دي :

۱ــ چې وروستی اواز (فونیم) یې بیواک (کنسوننت) وي لکه : کور ، ختیځ ، هلک ،
غښتل ، زیاړ ، هیواد ، غوږځنګ ، اوږمیز ، لاس ، پټ ، چرګ ، بیدوده (مستثنی) زیاتره دځپلوانو
نومونه لکه : خور ، مور ، ترور ، نږور ، ندرور ، ورندار ، تندار ۰ یاهغه ښځینه نومونه چې
په رینګ کې زیاتره ځپل پاي ځپلواک غور ځوي لکه ستن ، ځنګل ، لار ، ترخځ ۰ همداراز ډز (ډزي)
اومت (منهی) ۰

۲ــ له زورکی والی ي ( ) او ۰ پرته هرنوم چې په غبرګغږ (دیفتونګ)
پاي ته رسیدلی وي لکه سړي ـ لرګی ـ ځاي ـ بډاي ـ زوي ـ لوي ـ ښارندوي ـ پیژندوي
(مشهور) بوي ـ خوي ـ کډو ـ لو ـ جړاو ـ پړاو ـ کړاو ـ نیاو ـ لیو ـ تیو ۰

۳ــ هغه نومونه چې په زورکی پایکیږي لکه تره ـ پسه ـ لیوه ـ رواره ـ زړه ۰
بیدوده لکه : خوله ـ دواله ـ تراه ۰

٤ــ هغه نومونه چې په لنډو ( u ) پاي ته رسي لکه چاکو ، تتهو ، یابو اردو
(عسکري) ، لاټو ، لاهو ، کاهو ، ماکو ، پتهو ، پیښاوو (مقلد) ، ساندو (باجه) ،
ساهو (ازاد) ، بازو ۰

دښځینه نوم نښې : داورووسته نومونه زیاتره ښځینه نښې (پایلې) لري :

۱ــ له زورکی اولنډو (و) پرته هغه نومونه چې په ځپلواکو (واولو) پاي ته رسي
لکه ادې ، ناوې ، خوږه ولې ، ښادې ، رروري ، ودانې ، ورانې ، سهه ، پزه ، ښځه ۰

رڼا ، برېښنا ، پېدیا ، لوړ تیا ، ننخا ، څلا ، ورا ، بلا ، ژړا ، خندا ، غلا ، ملا (کمر) ، شا ، ویسا ، پښتیانا ، اریانا ، پیشو ، زانگو ، درخو ، بېو ، پیلبو (برېښنا) ، شادو ، بیزو ....

بیدیده لکه: دادا (پلار) ، ماما ، کاکا ، لالا ، بیرا ، بلا (مقابل) ، بومیا (پیشرا) ، هوسا ، جلیا ، ملیا (باغوان) ، کونا ، روندا ، سبا ، میلمه ، کوربه ، غوبه ، لربه ...

۲ــ د ســه په غبرگغز پای کېدونکی نوموونه ، لکه : کټو (کټوه) ،

۳ــ په زورکی والی ئ (غبرگغز) پای‌کېدونکی نوموونه ، لکه : لوړئ ، هوس ، کبل (غزال) ، شرئ ، مرئ ، ابئ (کور دخورد) ، بن (کلک دندره) ، متهس ، گدئ (فاحشه ، اربکه مسند ، قنجوغه) ، نجلئ ، مخ (بدلگړي نجلئ ، معما ، چیستان) ، نتکئ ، شپیلئ .....

دگنهــس (عدد) نښــــس :

الف ــ د نرینه گنهس (جمع) نښئ په داوروسته ډول دي :

۱ــ ان ، زیاتره هغه نرینه نوموونه ډېرگړي (جمع) کوي چې بیواکپای اوسا والاوي ، لکه هلکان ، پړانگان ، مچان ، کبان ، چنگاښان ،

ځینې خپلواکپای نرینه نوموونه لکه لیوان ، تیتوان ، اسان (اسونه) ، پسان (پسونه) ...

۲ــ ونه ، زیاتره بیواکپای بې سا نرینه نوموونه ډېرگړي کوي ، لکه سیندونه ، لونډونه ، میزونه ، کتابونه ، لاسونه ، نسونه ، سرونه ، پلونه ، خوبونه ، بوبونه ، توبونه ، وربوبونه ،

ځینې خپلواکپای نرینه نوموونه لکه ترونه ، وربرونه ، زرونه ، ځینې سا والا بیواکپای نرینه نوموونه لکه پلرونه ،

۳ــ زورکی ، ځینې لنډ څپیز اوخپلواک (وای) منځی نرینه نوموونه ډېرگړي کوي ، لکه : خره ، غله ، دښمنه ، مله ، مړه ، وازره ، پښتانه ، شپانه ، خوازه ، تراخه (ترخه) ، زږه (زړه) ، ماغزه ،

٤ــ لنډه ي ( ِ ) ، هغه نوموونه ډېرگړي کوي چې په نرمه ی ay پای وي ، لکه نرگی ، سړي ، څلمی ، نښتی ، غوبی ، وبی ، توکی ، پیاوړي ، روي ، گوي (غانبی) ، غاښی ،

د دي روستاړي بلګړ ان اوونه هم لز و ډيرراځي لکه ځلميان غويان وييونه
خرييونه ٠

٥ــ يان چې دان بلګړ دي او ځينې غبرګغږ پاي او خپلواکپاي نرينه نومونه ډيرګړي
کوي لکه ميرزايان ، اشنايان ، سويان ٠٠٠٠

٦ــ ګان چې دان يو بل بلګړ دي او ځينې خپلواکپاي نرينه نومونه ډيرګړي
کوي لکه ښاغاګان ، لاټوګان ، کدوګان ، تيتوګان ، ماماګان ، کاکاګان ، لالاګان ، بيرګاګان ،
پلاګان ( پلا ) ، بوداګان ٠
بيدوده لکه ميلمانه ، زامن ٠

ب ــ د ښځينه ګڼې ( جمع ) نښې په دې لاندي ډول دي :

١ــ اوزده ( ي ) ، هغه ښځينه نومونه جمع کوي چې په زوريا زورکي پاي ته رسي ٠
لکه : منې ، پزې ، خولې ، ويالې ، وړانګې ، خانګې ، سانګې (نيزې ) ، پانګې ، ډيوې ،
شونډې ، سګروټې ، پلې (پې) ، توکې تکالې ، غلې ، ملې ، خرې ٠٠٠٠

٢ــ زورکي واله ئ ے y ، هغه ښځينه نومونه ډيرګړي کوي چې په لنډه ي
پاي ته رسيدلي وي ، لکه ودانئ ، خپلوئ ، ښادئ ، ناروغئ ٠٠٠٠٠

٣ــ وې wo هغه ښځينه نومونه ډيرګړي کوي چې په الف يا اوزده ( و )
پاي ته رسي ، لکه ژړاوې ، خنداوې ، ملاوې ، نخاوې ، زانګووې ، پيلبوې ، ښکالووې ،
پيرزووې ٠

باګړيې ګانې هم راځي لکه شاګانې ، نخاګانې ، بريښناګانې ، زانګوګانې ،
بيزوګانې ، همداراز ورندارګانې ، نندرورګانې ٠٠٠٠

٤ــ آنې ، زياتره هغه ښځينه نومونه ډيرګړي کوي چې پاي ته يې لنډه ي
راغلي وي لکه بيديانې ، شاديانې ٠ او ديوي بلې نښې (يندي ) د بلګړ په توګه ، لکه :
ډوبيانې ، مزدورانې ، ترورانې ( ترندي ) ، مورانې ( ميندي ) ٠٠٠٠

ہ — یندي ، هماغه بیواکیایه خپلوان نوموته ډیرګړي ، کوي چې ورسره لنډون موسی لکه میندي ، خویندي ، نږیندي ، ترینديي ۰

٦ — صفر داماتا چې په زورکې واله ئ باندي پاي نوموته بې له کومې نښې د ډیرګړي په توګه هم راځي ۰ لکه : کړ کړ ، بجلې ، ډوډئ ، خپلې ، تېږئ (واسکټ) ، بلګړیس (یانې) هم یوځه دودلري ۰ لکه : کړکیانې ، بجلیانې ، کوچیانې ، موچیانې ، کبلیانې ، کچنیانې ، چینکیانې ، ترورېانې (ترورئ) ۰

بې دوه (مستثنی) ۰ لکه : نجونې او نجونه ، لوڼې ۰

۳ — پیر (حالت) ۰ چې نوم په خپل چاپیریال (غونډ یاغونډ له) کې څه حالت لري ۰ لکه (: پلوشه راغله ، پلوشې ډوډئ وخوړه ، دپلوشې ورور ناروغ دي ، له یوه لاسه ټک نه خیږي ) دلته ګورو چې (پلوشه ، یو اولاس) څنګه خپل حالتونه او بڼې بدلوي ۰ په پښتو کې دیوه نوم پیږد کړوال چار (فعلی عملیې ) اوویکو (اداتو ) له مخې څرګندیږي او دپیرنښې یې هماغه پایلې یا روستاړي دي چې په پاي پورې یې نښلي ۰ نوم پیرونه په داورو سته ډولودي :

۱ — کړندپیر (فاعلي حالت ) لکه ځلمي ډوډئ وخوړه ۰ ځلمی راغی ۰ ځلمی ډوډئ خوري ۰ په دریواړو غونډ لوکې ځلمی کړند پیر لري یا په بله وینا په دریواړو ځایوکې ځلمی کړند (فاعل ) دي ؛

۲ — لنډ کړی پیر (بې واسطه مفعولي حالت ) لکه : بارك اوبه وڅښلې ۰ بارك پلوشې ته لیکی (کتاب ) ورکړ ۰ خوازك پلوشه ووهله ۰ په دې غونډ لو کې (اوبه ، پلوشه اوپلوشه) لنډ کړی (بې واسطه مفعولونه) دي یا په بله وینا لنډکړي پیرلري ۰

۳ — لرکړي پیر (بالواسطه مفعولي حالت) ۰ لکه : ببرك زمرك ته لیکانې ورکړ سنګ اشرك ته خبره وکړه ۰ غرزې ماته روښسي ژبه رازده کوي ۰ په دې غونډ لو کې زمرك

اخلك او (ما) نركړي دي يا په بله وينا دغه د ریوار ه نوموونه لرګړي پيرلري اوپه هغه غرنده اسو کی (ليکانی ، خبره او رومی زمه) لنډه کړي بلل کيږي . يا په بله وينا دغه د ریوار ه نوموونه لنډه کړي دي .

۴ـ لونسن پير (الی حالت) : داهغه چی د یوه لونبیی یا الی په وسیله یو کار ترسره شوی وی لکه : تورياليی په بياتي زړيل شو ـ بريالی په ليکانی يو ليك وکيښ ـ ګلخانګه په کاشوغه د ورژی خوري . په دغو دوو بيلګو کی (بياتی ، ليکانی او کاشوغه) لونسن يا الی نوموونه دي اويه دي توګه لونبنن پيرلري .

۵ـ تولپير (اضافی حالت) : هغه نوم چی يو شه وروورياړه لري ، تولنوم (مضاف اليه) ګڼل کيږي اوتول پير (اضافی حالت) لري . لکه : د ويالی اوبه ښي دي . د زمري کور ښکلی دی . د اسمان ستوري په وریځ کی پټيږي . (ويالی ، زمري او اسمان) تولنوموونه دي يا په بله وينا دغه د وونوموونو تولپير غوره کړي دي .

۶ـ رتون پير (منتهايی يا مفعول منه حالت) : داهغه چی پيونوم د يوه کار پيلیځ (منشا) ګرځيدلی وي . لکه : له کند هاره راغلم ـ له ښونه زيږي ـ له بدو وانبه زيږي . دلته (کندهاره ، ښو او بدو) رتون پيرلري .

۷ـ تون پير (ظرفی يا مکانی او زمانی حالت) همدا رنګه مفعول اليه يا استقامتی او معيتی حالت : هغه مثال نوم يا ځاینوم چی د يوه کار ظرف ګرځيدلی وي او يا ورته يو کار متوجه شوي وي . تونوم بلل کيږي او په دې توګه تون پيرلري . لکه : په کور کی څوك نشته ـ په شپه کی خلك بیرنګرځی ـ زه د ورځی کارکوم . دلته (کور ، شپه او ورځ) تونپير يا ظرفی حالت غوره کړي دي .

۸ـ بلن پير (ندائيه حالت) : کله يوه نوم ته بلنه يا غږ شوي وي . بلننوم (منادا) بلل کيږي او حالت ته يی بلنپير وايی . لکه : يه هلکه ! يه خلکو ! وانجلمیه ! ...

(هلکه ، خلکو او نجلمیه) بلن پيرلري .

یادښت : که یوه نوم په کوم پورتنی پیرکی خپلی بڼی ته بدلون ورکړي وي ٠ او ښتی نوم بدل کیږي یاپه بله وینا هغه نوم اوښتی پیر (مغییره حالت) لري او که اوښتنه یې نه وي موندلی نو ارنوم ورته وایی او حالت یې ارپیر (اصلی حالت) بلل کیږي ٠

دنوم پیر (اسمی حالت) ښی (پایلی) ٬ زیاتره له ګڼی (جمع) هغو سره سمون لري ٠ لکه ځلمی — دځلمی — پلوشه — دپلوشی ٬ شپون — دشپانه ٬ غل — غله ٠٠٠ پرته له ان اووې او دهغو له بلګرونو (لیوان ٬ سیندونه ٬ بیبیانی ٬ شادیانی ٬ ژړاوې) او دبیواکپایو ښځینه نومونو (میندي) ٠

ډیرکړي (جمع) نومونه بیا په یو مخیز ډول خپل اوښتی پیرپه (و) ښیی ٠ لکه : دښځو — سړیو — هلکانو — خویندو — بریښناګانو ٠٠٠٠

په دي توګه په ان ٬ وې ٬ ونه ٬ انی ٬ یندي او د دوي په نورو بلګرونو (الومورفونو) جمع کیدونکی نرینه او ښځینه نومونه له (بلن پیر) پرته نوره او ښتنه نلري ٠ البته په بلن پیرکی بیواکپاي نومونه خپل پاي په زورونو (فتحو) روستاړي کوي ٠ لکه په هلکه! په موري! په پښتنو! داوښتونکو نومونو فورمول په دي ډول دي :

زه ٬ ته (دحال مفعولیت پرته) ٬ دي ٬ دا ٬ هغه ٬ هغه ٬ څوك ٬ سړي ٬ ښځه ٬ پښتون ٠٠٠٠

— ویپکی (ادوات) یادلیزند تیرمهال کړند والی (متعدي ماضی فاعلیت) = ما ٬ تا ٬ ده ٬ دي ٬ هغه (په زورکی) ٬ هغی ٬ چا ٬ سړي ٬ ښځی ٬ پښتانه ٠٠٠٠٠

نااوښتونی (تغییر نه موندونکی) نومونه : ځینی داسی نومونه شته چی په یوګړي بڼه په اتو واړو پیرونوکی کوم جولیز اوښتون (تغییر) نه مومی او هغه دادي :

۱ — الف پاي نومونه : لکه کاکا ٬ ملا ٬ دادا ٬ پښتیانا ٬ اریانا ٬ پکتیا ٬ سبا ٬ یما ٬ کنیشکا ٬ لوړتیا ٠٠٠

۲ــ وه ــ پای نومونه (لنډه یا اوږده)، لکه زانګو، بیزو، درخو، تښتو؛

۳ــ دروه‌ی ــ پای نومونه، لکه: نجلۍ، لیونۍ، ښوکۍ، سپوږمۍ...

۴ــ زورکی پای نومونه، لکه: نیکه، تره، زړه، وراره، واده....

۵ــ ځینی زورپای (ستای) نومونه چی هم ښځینه کارېږي او هم نرینه او ځیناځه له دري سره ګډون لري، لکه ډاډه، ډاډه (بریان) ښایسته ــ ساده ــ پیاده ــ شهزاده، ملګه، ګړیږه، غږیږه، پرونه.... دواړه نجونې پېرله‌مخي.

۱ــ زاتوره بېواکپای ښځینه او ځینې بې‌واکپای نرینه نومونه چی په زورکی نه‌بدلېږي کېږي لکه: په موږي! په ترورې! په خورې! په ورورې! په پلاره!

۲ــ وي غبرګغږ ــ پای نومونه لکه: په زویه! په پرهندوه! په ماشندویه! لویه! سویه!

۳ــ ړي غبرګغږ ــ پای نومونه لکه: په بوره! په خویه!

د نومونو څلورګونی ډلـــــی:

لومړی ــ څیز نوم (اسم):

څیز نوم چی د وییز (عنصر) ژېبوهان ((اسم)) بولي، یوداسی نوم دی چی نیغ په نیغه د یوه څیز یا ښکارندی (پدیدی) نومونه (نامګذاري) او څرګندونه کوي او د اورسته ډولونه لري:

۱ــ پڅنوم (ذات اسم): چی په یوه ننګیریدونکی (حس کیدونکی) اړه لري، یا په بله وینا داسی یو څیز نوم وي چی زموږ په حواسو حس کیدای شي، لکه ډبره، لرګی، اوبه، هوا او داسی نور.

۲ــ مانا نوم (مانا اسم) چی په یوه نه‌ننګیریدونکی (غیر محسوس) څیز یا په لنډه وینا په یوې ښکارندي (پدیدي) پوري اړه لري او هغه نوموي، لکه ښایست، ښتیا،

روغتیا ، هیله ، ننګ ، پت ، میړانه ، پیاوړیتوب ، رخه (کینه) ، خوښي ، خوز (درد) ، ویر ، زغم ، اندیښنه ، لوین ، درناوي ، سپکاوي ، ښیګڼه ، بدي ....

٣ــ ځانګړنوم (خاص اسم ): چي یو ځانګړي شیز ، پدیدې ، وګړي یا ځاي نوموي ، لکه پښتو ژبه ، پښتو نواله ، خوازك ، زرمینه ، ننګرهار ، کندهار ، پکتیا ، هند ، ایران .......

٤ــ ټولنوم (عام اسم) . داسي شیز یا ښکارنده نوموي چي ځانګړي او خاص نه وي بلکه ډولونه او ځیلونه ولري . لکه ونه ، هلك ، نجلی ، هیواد ، څاروي ، وګړي ، اولس ، تړون ، ژمنه .... ...

٥ــ نوز نوم (جنس اسم) : چي په یوه شمیرید ونکی شیز (جنس) اړه لري . لکه : زر ــ اوبه ــ اوسپنه ــ اور ...

٦ــ غونډنوم (جمع اسم) : چي یوه ډله او غونډ نوموي . لکه : ټولی ، ټولګی ، ګوند ، ټبر ، ګورم (پاده) ، رمه ......

٦ــ انګینوم (صوت اسم) : چي د طبیعي یا صنوعي اوازونو انګی یا انګازه (پژواك) نوموي . لکه : درز . دروز . درزي . درزا . درزهار . ګرب . ګړوب . ګړبی . ګړبا . ګړبهار . ترپ . تروپ .....

دویم ــ ستاینوم :

ستاینوم (صفت) چي په خپلواك ډول څه نه نوموي بلکی دیو څه څرنګوالی نوموي یا په بله وینا یو ستاینوم په یوه شیز نوم اړه لري او دهغه څرنګوالی ښیي ، لکه تود ، سوړ ، غټ ، ووړ ، تور ، سور ، ښکلی ، ښایسته ، غښتلی ، کمزوري ، روغ ، ناروغ ....

په پښتو کی ستاینوم دلوړتیاد پوړونو یا دلزوالی ، ډیروالی ، سستوالی او تونډوالی بیلا بیلی ښکاره دریګوني درجی نلري لکه په دري ژبه کی په ــ بهتر ــ بهترین یا بزرګ بزرګتر بزرګترین

له دې کبله یو پښتو ستاینوم د ووییکو ( اداتو ) په ملتیا خپل پوړونه یا درجــــې او طبقې ښکاره کوي لکه ښه ــ ډیر ښه ــ لاډیرښه یا سپین ــ ډیر سپین ــ خوراسپیــن ــ ترټولو سپین ــ زښت زیات سپین اودا سې نور ۰

د ستاینوم ډولونه :

ستاینوم په دوه ډوله دی ، لنډ او لــر ۰

لنډ ستاینوم ، هغه دی چې تر څیز نــوم دمخه اوورسره جوخت راځی اولنډ په لنډه یې ستایی ، لکه توره ډېره ، روغ سړی ، ښکلی نجلی ۰۰۰۰

لرستاینوم ، هغه دی چې ترڅیز نوم وروسته راځی او له کړوالی برخی(مسند ) سره پیوستون لري ۰ که څه هم هماغه څیز نــوم ستایی ۰ لکه : ډېره توره ده ــ سړی روغ دی ــ نجلی ښکلی ده ۰۰۰۰۰

لرستاینوم زیاتره دکړول ( قید ) په توګه هم کارول کیږي لکه : هلك ( پلی ) راغــې ــ اسمان په ستورو ( ښه ) ښکاري ــ پلوشه ( ښکلی ) پریښې ــ زه کورته ( ډیر ) راغلم ۰۰۰۰

دستاینوم اونستاینلي ( صفت او موصوف ) ګرډانې سمون :

په پښتو کې ستاینوم ( لنډ یالر ) اوستایلي یا هغه څیز نوم چې ستایل کیږي ۰ دنوم اوړ ون ددروګونو اړخو ( نوزي ــ ګڼــې ــ پیر ) له پلوه سره زیاتره سمون لري لکه : ړوندغل ــ ړنده غله ــ ړانده غله ــ ړندې غلې ــ دړانده غله ــ دړندې غلې ــ دړندو غلو ۰۰۰۰۰

یا په نابشپړ ډول اویا ابتړ لږه دیوه یا دوواړخوله پلوه ، لکه : لوی غل ــ لویه غله ــ لوی غله ــ لویې غلې ــ دلوی غله ــ دلویې غلې یا سپین غل ــ سپینه غله ــ سپین غله ــ سپینې غلې ــ دسپین غله دسپینې غلې ــ دسپینو غلو ۰۰۰۰

په دې توګه ځینې ستاینومونه له خپلو اړوندو ( مربوطو ) څیز نوونو ( ستایلیو ) سره بشپړ اوړون موي او ځینې نیمګړي ۰ لکه پــه دې لښتیلیك ( جدول ) کې :

| | |
|---|---|
| شین ختکـــــــې | ـ شنه ختکـــــــې |
| د شنه ختکـــــــې | ـ د شنو ختکیـــــــو |
| شنه هندوانـــــه | ـ شنې هندوانـــــې |
| د شنې هندوانـــــې | ـ د شنو هندوانـــــو |

د ریم ـ شمیرنوم ( عدد د اسم ) :

شمیر نوم هم د ستاینوم غوندې په خپلوا ك ډول كومه نومونه نه كوي بلكې په یوه څیز نوم اړه لري ۰ خــــو د ستاینوم غوندې یې څرنګوالی نه چې څومره والی او پوړ والی (تدرج) ښیې ۰ لكه یوـ دوه ـ درې ۰۰۰۰ یا لومړي ـ دویم ـ دریم ۰۰۰۰

د شمیرنوم او شمیرلی ( عدد او معدود ) ګردانی سمون :

په پښتو كې شمیرنوم لكه لنډ ستاینوم ترخپل اړوند څیزنوم ( شمیرلی ) دمخه راځي او ډیر لز ورسره اوړون مومي ۰ هغه دا چې لومړي دوه (یو) او ( دوه ) ورسره دنوزي او پیرله مخې ګردانیږي او نور پورته ورسره یوا ځې دپیرله مخې ، لكه په دې لښتیلیك كې :

| | |
|---|---|
| یوغل | یوه غله |
| دیوه غله | دیوې غلې |
| دوه غله | دوې غلې |
| د دوو غلو | د دوو غلو |
| درې غله | درې غلې |
| د درو غلو | د درو غلو |
| څلورغله | څلورغلې |
| د څلورو غلو | د څلورو غلو |
| ۰۰۰۰۰۰ | ۰۰۰۰۰۰۰ |

د شمیرنوم ډولونه :

شمیر نوم د اوروسته ډولونه لري :

۱ـ اَر شمیر (اصلي عدد) لکه یو ـ دوه ـ دري ـ څلور .....

۲ـ پوړ شمیر (وصفي یا رتبي عدد) چې د خپل شمیرلي پوړ اورتبه ښیي لکه :

لومړي ـ دویم ـ دریم ـ څلورم .....

۳ـ ووړ شیمر (کسري عدد) ، چې داړوند څیزنوم (شمیرلي) ماتوالي اوبرخه والي

ښیي لکه دویمه ـ دریمه ـ څلورمه ......

لسیړ (دهه) ، سلی (سده) زری (هزاره) یوډول ګروهي شمیر نومونه دي .

٤ـ ویش شمیر (انقسامي عدد) چې داړوند څیز نومونو ویشنه او جوړه جوړه

کونه څرګندوي اوبه دي توګه د ووړ شمیر غوندې له ډیرګړیو (جمع) څیز نومونو سره اړه لري نه

له یوه سره . لکه : یو یو ـ دوه دوه ـ دري دري ـ څلور څلور ........

۱ـ اټکل شمیر (تخمیني عدد) چې دیوه څیز نوم (معدود) پرځای غبرګ غبرګ څیزنومونه

ښیي . اوبوهم نه ټاکي لکه : یو دوه ـ یو دري ـ دوه دري ـ دري څلور ـ یولس سلس شل ـ

شل دیرش ـ پنځوس شپیته ..... په دي توګه اړوند څیز نومونه د داړو شمیر نومونو

ترمنځ اټکلیدای اړ بمیریدای (انتخاییدای) شي . یا لومړي یا دویم اویا دهغو ترمنځ .

دغه جوړه جوړه شمیر نومونه زیاتره پرله پسي وي لکه یو دوه ـ دوه دري اویا په یوه ټاکلي

اوعام منلي واټن سره لکه اته ـ لس یا لس شل مګر ښایي هیڅ یو پښتون دوه څلور ـ دري

پنځه ـ څلور شپږ .... ونه وایي . البته (یو) له هرپورته شمیر سره جوړه کیدای شي

خو هغه هم زیاتره د پیژند (حرف تعریف) په توګه چې اټکل ورسره په څرمه (ضمني) ډول

هم څرګندیږي .

## خلورم – نومځـــــري (ضمير)

نومځري هغه وي دي چې دیوه نوم ښکارندوی کوي ، د هغه پرځای راځــــي او یا یې ملګرتیا کوي ۰ او د همدغې دندې له مخې د نومونو په ډله کې ځای نیسي ۰ له نورو نومونو (ځیز نوم – ستاینوم او شمیرنوم) سره د نومځري توپیر دادی چې دا پر درو ګونو اړخو (نوزي – ګڼـې او پیر) سربیره د وګړي (لومړي – دویم او دریم) له مخې هم اوړون مومي ۰ (وینفرید اولریش د ژبپوهنې قاموس ۲٤۲) ۰

د نومځرو ډولونه : نومځري د جولي او چارله مخې پر دې وروستیو ډلواو ډلـو ویشــــل کیږي ۰

١ – ځانګړ نومځري (شخصي ضمیرونه) ۰ چې دوه ډوله دي : غښتلي – کمزوري ؛

الف – غښتلي (منفصل) :

| وګړي / ګڼه | | یوګړي (مفرد) | | ډیرګړي (جمع) |
|---|---|---|---|---|
| | | اریـــر | اوښتي پیـــر | |
| ١ | | زه | مـــا | مـــوږ |
| ٢ | | تـــه | تـــا | تاســـې |
| ٣ | نرینه | دي هغه | ده هغـــه | دوي هغـــوي |
| | ښځینه | دا هغه | دې هغې | |

ب – کمزوري (متصل) :

| وګړي / ګڼه | یوګړي | ډیرګړي |
|---|---|---|
| ١ | مې | مو |
| ٢ | دې | مو |
| ٣ | یې | یې |

۲ــ تولنو مخري ( ملکی یا اضافی ضمیرونه)، چې تول (ملکیت) اوا ړوندي (متعلقیت) ښیې ، دغه نومخري هم پرغښلیو او کمزوریوویشل کیږي ؛

الف ــ غښتلی ( منفصل ) :

| گڼه / وګړي | | یوګــړي | ډېرګـړي |
|---|---|---|---|
| ۱ | | زمــا | زمــوږ |
| ۲ | | ستــا | ستاســـ |
| ۳ | نرینه | دده | دوي |
| | ښځینه | ددې | |

کمزوري تولنومخري کټ مټ دځانګړیو کمزورو هغو غونډي دي لکه :

| گڼه / وګړي | یوګــړي | ډېرګـړي |
|---|---|---|
| ۱ | مې | مو |
| ۲ | دې | مو |
| ۳ | یې | یې |

۳ــ نغو تنومخري ( اشاري ضمیرونه) : هغه نومخري چې وګړو یا څیزونوته نغوته (اشاره) کوي اود هغو دنومونو ځاي نیسي او یا ورسره لکه ستاینوم ملګرتیا کوي نغوتنومخري دنوزي ــ گڼې ــ پیر ــ اویواځې ددریم وګړي اوواټن (فاصلی) له مخې اوړون لري ؛

| گڼه / وګړي | | یوګــړي | | ډېرګــړي | |
|---|---|---|---|---|---|
| | | اړیېــر | اوښتن پیېر | اړیېــر | اوښتن پیېــر |
| ۱ | لنډ | دغه | دغه ه | دغه | دغــو |
| | | دغه | دغس | | |
| | لر | هغه | هغه ه | هغه | هغو |
| | | هغه | هغی | | |
| | لالر | هوغه | هوغه ه | هوغه | هوغــو |
| | | هوغه | هوغس | | |

٤ــ پوښتنو مخري (استفهامي ضميرونه): چې د يوې پوښتنې لپاره په کار لويږي او د وګړي ــ شيز ــ مهال ــ تون ــ څرنګوالی او څومره‌والی له مخې ډول ډول دي.

اوړون يې زياتره پواځې د پيړله پلوه لزو ډېرترسره کيږي:

ــ څوک (چا)؛ چې د وګړي يا وګړو لپاره راځي چې څه يې کړي يا يې کوي يا پرې څه شوي يا کيږي. اوزياتره د پوښتنې غونډلو (جملو) په سرکې راځي.

څوک راغی ـ راغله يا راغلل؟ ـ څوک ځي؟ ـ چا ويل؟ ـ څوک وايي؟ ـ څوک يې وواهه؟ ــ ووهلـــه يا ووهل؟ ـ څوک ووهل شو؟ ــ ووهل شوه؟ ــ ووهل شول يا ووهل شوې؟ ــ څوک وهل کيږي؟

څوک داړيک اوناټــک نومخري په توګه هم کارول کيږي او همدارنګه د پيژند (حرف تعريف) کار هم ورکوي لکه څوک مې ويلډ ــ نن يو څوک راځي.

ــ کوم: د وګړي يا وګړو ــ شيز يا شيزونو لپاره راځي چې د نورو پوښتنو مخرو پرخلاف پر پيرسرپيره د نوزي له پلوه هم اوړون لري. لکه په دې وروستيو غونډلوکې:

کوم سړي راغی؟ کوم سړي ويل؟ د کوم سړي رنګ زيړ وي؟ کومه ښځه راغله؟ کومې ښځـــې ويل؟ د کومې ښځې رنګ زيړ وي؟ کومو ښځـــو ــ سړيو ويل؟ د کومو ښځو ــ سړيو رنګونه زيړ وي؟

ــ کله: چې مهال پوښتي او هيڅ اوړون نلري، لکه کله به راشې؟

ــ چيري: چې تون (ځاي) پوښتي او هيڅ اوړون نلري. لکه چيري ځـــې؟

ــ څنګـــه: چې ديوه وګړي يا شيز يا يوه چار څرنګوالی پوښتي، لکه څنګه راغی؟ څنګه راغله؟ څنګه کار دې وکړ؟ څنګه نجلۍ دې وليده؟ څنګه ليکې دې ويړه؟

ــ څــــــه: چې زياتره ديوه شيز يا وګړي پيژندنه پوښتي اوزياتره په ډېرګړي او نوز نوم (جنس اسم) پورې اړه لري؛ بې له دې چې خپله بڼــه واړوي، لکه: داڅه دي؟ داڅه دي؟ څه دې وکړل؟ څه دې راوړل؟ څه يې نرخ دی؟ څه يې ارزښت دی.

ــ څـــــو: چې د وګړو يا شيزونو شمير پوښتي نوځکه تل ډېرګړي دی لکه: څو نجونې راغلې؟ څو هلکان راغلل؟ څو ختونه دې ويړل؟ البته څو په يوه بله مانا يو کړول (قيد)

— پس (بسویش) چی نوم په تونپیرکی ښیی لکه د زهرو گولی خورم پس ( ملنگ جان ) ۰

— باندې ( بالایش ) چی یو نوم په تون اوهغه هم په پورتنی (استعلایی) پیرکس ښیــــــی لکـــه :

گل وای غوړید لی باندې ملاست وایږه اوته ( خوشال ) ۰

— پرې ( بران ) هم ( باندې ) ورته د نده پرځای کوي لکه :

ماپرې سرکیښود — پیس می پرې پورد ي ۰

— پــی ( بــه‌ان ) چی ( په اوپرې ) هم ویل کیږي په یوه لوښنی (الی) پیرکس دیوه نوم ځای نیس اوله (پرې) سره یی په د ي غونډ لو کی توپیر کولای شو :

زه په پښتو لیکه کوم ( من په پښتو می نویسم ) زه پرپښتو لیکه کوم ( من د رباره پښتومی نویسم ) ۰

ترې ( ازان ) چی یونوم په وتون او تون او هغه هم په کښتنی ( استفلایـی ) پیرکی ښیی لکه :

ماترې‌واخیست — ماترې لاندې کیښود ځینی له دغوویېگوځروسره پلوي نومځري‌هم مختیارې کیدای شی لکه را — د ر — وریاندې ۰۰۰ مگر دوریکی پرځای ( ورکی ) ویل کیږي‌لکه له نورو اویسرېلوسره ( ورلاندې — ورته — ورسره — ورځخه ۰۰۰ ) ۰

۷— اړیک نومځري ( ارتباطی‌ضمیرونه ) :چی‌په یوه غونډله کی د تیري یا راتلونکی‌غونډلی له یوه ځیز نوم یا نومځري سره راز راز اړیکی ټینگوي ۰ په دې توگه په دې وروسته ډولـــو ویشل کیـــــږي :

— چــی : لکه خوازك چی د ببرك ورور د ي ٬ ننگرهار ته ولاړ — ننگرهار یوسیمه د ه چی‌تود ه هوالري— زموږ هیواد په داسی ځای کی پروت دي چی سمند رته لارنلري — هغه کال ډ یرودان وي چی ډیر اورښت ولري— زموږ هیواد د ومره ښکلی د ي چی له سویس‌سره سیالی کوي ۰ زه د ومره کتابونه لرم چی له شمیره وتلی دي ۰

— چی یـــــی : یوترېښتی ( ترکیبی ) یاد وه توکیزه ( د وه جزیی ) اړیك‌نومځري دي ۰ چی هم په تیره غونډله کی له راغلی نوم سره اړیکی ټینگوي اوهم د هغه کړ ند والــــی ( فاعلیت ) ٬ کړیوالی ( مفعولیت ) اوتولوالی ( ملکیت یا اضافت ) ځرگند وي ۰ لکه : پکتیایوه داسی سیمه ده چی یی ځنگلونه نوم لري — سنگ ځکه بریالی شو چی یی زیار ایستلی و— ماشوم هله په ژړ ا شو چی یی مور وواهه ۰ په دې وروستی غبرگه غونډله ( مضاعفـــه جمله ) کی

( چې یې )هم له ( هله) سره اړیکې بنیي اوهم دماشوم کړیوالی ( مفعولیت) او تولوالی ( ملکیت له مور سره )؛

څوک چې : یوبل تړښتی اړیک نومځري دي چې یوالی هغه وخت د څرمه غونډلی ( فرعی جملی )په سرکې راځی چې ترآ ري دمخه وي نوځکه وایو(څوک چې خوب کړي نری کتس به زیږوي )نه داچې ووایو :(نرکتس به زیږوي څوک چې خوب کوي یالکه اجمل ختټك چې وایی : ( ځی ؛ هغه خواروته جنت وګټو څوک چې له موره دوزخیان پیدادي )؛ ددي ګرامري بڼې. داسی مفيداي شي چې دویمه( څرمه غونډ له) پرلومړ ۍ ( اري غونډلی ) دمخه کړ و( څوک چې له موره دوزخیان پیدا دي - ځی هغه خواروته جنت وګټو) او یاداچې څوک تري وغورځوو ، په دې ډول دتورو ژبو لکه اروپایی هغو په پښتو نامسم .. غونډ لو بیلګی دادي :

غرزي کد هار ته ولاړ ، څوك چې هلته خپلوان ګوري پتنګ په لومړ ي ګڼه بریالی شو چاچې زیار ایستلی و .....

یې : غرزي کد هار ته ولاړ چې هلته خپلوان وګوري- پتنګ په لومړ ي ګڼه بریالی شو، چې یې زیار ایستلی و......

همداراز چیري چې - کله چې - کوم چې - څه چې - څوچې - څومره چې ...

...واخله ، لکه په دې غونډلو کی : غرزي کد هار ته ولاړ چیري چې خپلوان ګوري - زه هیواد ته هغه وخت راستون شوم کله چې ډیره وچوبه وه - مایو لیکانی واخیست کوم چې بنه کارکوي- کار بنه دي څه چې نیکمرغی راوړي- پنځه کتابه می واخیستل څوچې زما په کاروو- دوه بنه غنم می وپیرل څومره چې می پیرلای شول ....

...بڼې یې : غرزي کد هار ته ولاړ چې خپلوان وګوري- زه هیواد ته هغه وخت راستون شوم چې ډیره وچوبه وه -- مایو لیکانی واخیست چې بنه کار کوي- کار بنه دي چې نیکمرغی راوړ ي- پنځه کتابه می واخیستل چې زما په کاروو.....

په دي ډول پښتو له آره همداسو ( چې ) هم د اړيك ويکې په توګه کاروي اوهم يو،
د اړيکـــــــنومځري په توګه او د پورتنيو پوښتنو مځرو ( څوك ــ کله ــ چيري ٠٠٠٠ ) ملګري
کول ورسره بې ځايه دي په تيره په آره غونډه له اړاپه د اس ځرمه کې چې تر آري وروسته راځي٠
البته څوك ــ کله چيرې اونورپوښتنو مځري چې له(چې ) سره ملګري کيږي يواځي د اړيکو
ييکو(ارتباطي ا داتو) چار څرګندوي نه د اړيکو مځرو ؛ لکه څه چې کړي هغه به ريبـــــــــي ــ
څنګه غرهس يې کړيوړي - هله به خبرشي چې تاروجبې له ورشي ــ چيري دي بــــــــه
هلته دي شپـــه ! څومره چې ګوره اچوي هومره خوزيږي ٠٠٠٠٠

٨ــ غبرګون نومځري يا انعکاس ضميرونه :

هغه نومځري دي چې ډيره چار هم کړند اوس او هم کړي په پښتو کې د اراز نومځري نومونو
يا ځانګړنو مځروسره د (( ځان )) په ملګري کولو لاسته راځي چې زياتره په همدي يوه يو ګړي
( مفرده ) بڼه هرځاي را تلاي شي لکه : ځلمي ځان ژوبل کړ ــ ځلمي او زمري ځان (ځانونه)
ژوبل کړل هغه ځان ژوبل کړ ــ هغوي ځان ( ځانونه) ژوبل کړل ٠ دپوره څرګندتيـــــا
لپاره له ځان سره (خپل )هم ملتيا کوي لکه هغوي خپل ځان ژغوره ٠

٩ــ ناټيکمنو مځري (ابهامي ضميرونه) : چې ډيوه ناجوت (نامعين) رګړي
ياخيز لپاره راځي او د بيلا بيلو دندو له مخې په لاندې ډولو دي :

ــ هر ؛ چې زياتره په يوګړي اړه لري او د نوزي او پير له مخې لږو ډيرااوړون
لري ؛ لکه هر ځلمي ــ هره پيغله ــ هرځت( کميس ) ــ هره ګنډ ى (کرتي ) ــ هري پيغلي ٠
په اوښتي ډيرګړي کې لکه هرو پنځوشاګردانو ته يو يو ليکي ورمېد ٠ يا زره په هرو دوو اوونيوکې
سينمـــــاته ځم ٠

ــ بـــــــل : يواځي د شميرېد ونکې يوګړي نوميرځاي راځي اويا ورسره د نځوتتر
مځري غوندې ملګرتيا کوي ٠ لکه : بل ځلمي ــ بله پيغله ــ د بل ځلمي د بلې پيغلې ٠٠٠

ــ نو ر : يزاځی د ډيرگړي يانوز نوم (جنس اسم) ښکارندوين اوملگري کوي اوځه ناځه اوړ ون لري لکه نور هلکان ــ نوری پيغلی ــ نورغنم ــ نوره وسپنه ــ نوره خاوره ــ نوري اوبه ــ دنورو هلکانو ــ دنورو پيغلوــ د نورو غنمو ــ د نوري وسپنې ــ د نوري خاوري ــ دنورو خاورو ــ دنورو اوبو ۰۰۰۰۰۰

ــ ټــــول : دنورغوندې په ډير گړي او نوز نوم اړه لري اوله لويديزي پښتو پرته هماغس اوړ ون مومی لکه ټول هلکان ــ ټولی نجونی ــ ټول تيل ــ ټوله خاوره ــ ټولی خاوري ــ ټولو هلکانو ــ د ټولو هلکانو ــ ټولو نجونو ــ د ټولو نجونو ــ د ټولو تيلــو ــ د ټولی خاوري ــ د ټولو خاورو ۰۰۰۰۰۰

ــ واړ ه : د ټول همانيزدي خوواځی د نوزي او پيرله مخی اوړ ون او اوښتون موس ــ لکه واړه هلکان ــ واړي نجونی ــ واړو هلکانو ــ واړو نجونو ــ واړه خاوره ــ واړي خاوري ــ دواړي خاوري ــ دواړ و خاورو ۰۰۰۰۰۰

ــ دوا ړه : ټل دوگړي (تثنيــه) دي او د (واړه) غوندې په نوزي (جنس) اوپير اړه لري لکه : دواړه هلکان ــ دواړي نجونی ــ دواړو هلکانو ــ دواړ و نجونو ۰۰

ــ څه : پر ...... بويښتنو مخري سربيره يو ناوړيدونی ناټيك نومځري هم دي لکه : څه می وليدل څه نشته ــ چس نه کار هلته څه کار ۰ څه له نورو ناټيك نومځرو او ځينو ستاينو مونو سره ترښتی ناټيك نومځري جوړ وي لکه : بل څه ــ نور څه ــ هرڅه ــ هيڅه (هيڅ څه) لږ څه ــ ډير څه ۰ همدارنگه له پيژند (يو) سره لکه يو څــــه ۰

ــ څـــو : هم پريوښتنو مخري سربيره يو ناوړيدونی ناټيك نومځري دي لکه : څو پيسی می په کار دي ــ څو مياشتی په کار دي چی زه کتاب وليکم ۰ څو له پيژنداو ځينو ناټيك نومځروسره ترښتی ناټيك نومځري جوړ وي لکه : يو څو ــ هر څو ــ هيڅو (هيڅ څه) ۰۰

ــ ځينی : د ډيرگړي او نوز نوم ښکارندويی کوي لکه ځينی شاگردان ځينی شاگردانی ځينو شاگردانو ۰۰۰۰

ـ هیڅ : دیوه ناټاکلی څیزیا څیزونو نشتوالی ښیی او کوم اوړون نلري • لکه :
هیڅ هلك ، هیڅ هلکان ، هیڅ نجلۍ ، هیڅ نجونې ـ هیڅ هلکانو ـ هیڅ نجونو
هیڅ غنم ـ هیڅ غنمو • • • • • له پیژند(یو ) او زیاترو ناټیك نومځرو سره دلومړي ټوك
په توګه تړښتی ( ترکیبی )ناټیك نومځري منځ ته راوړي لکه : هیڅ یو ـ هیڅه ـ هیڅو ـ
هیڅو مره ـ هیڅ کوم ـ هیڅ بل ـ هیڅ نور ـ هیڅوك ـ هیڅکله ـ هیچیري ( هیڅ چیري)
هیڅ دواړه یاپه دریتوکیز تړنګ ( دري جزئی ترکیب ) کی لکه : هیڅ کوم یو ـ هیڅ کوم
څوك یاپه څلورو ټوکیز تړنګ کی لکه : هیڅ کوم یونیم ـ هیڅ کوم یوبل • • • • • •

ـ څوك : هم پریوښتنو مځري ( او اړیك نو مځري ) سربیره یوناټیك نومځري
هم دي چی هم د څیزنوم ښکارندویی کوي او هم دپیژند ( آرتیکل ) لکه : نن څوك راغلی ـ
څوك یوکار کوي ، څوك بل ـ چامی لیکانی واخیست ـ څوك سړي راروان دي ـ څوك ښځه
می ولیده • په نورو پیرونو کی لکه : چاته می لیکی ورکړي دیخواوس می هیردي ـ له
چانه می لیکی واخیست بیامی هیرشو ـ خپل کارپه چانه کوم ـ ځلمی له چاسره پریوهلارنه ځی
زه څوك نه وهم ـ پرچا کار نلرم ـ څوك چی بل چاته کوهی کینی • پخپله پکی لویږي ـ
له ماسره دچاڅه کار دي په شپه کی چاته ورتګ ښه نه دي • • • • • •

له پیژند (یو ) او ځینو نو رو ناټیك نو مځرو سره هم تړښتی ( ترکیبی ) ناټیـــك
نومځري جوړ وي • لکه : یوڅوك ـ هرڅوك ـ هیڅوك ـ بل څوك ـ نور څوك ـ څوك سړي ـ
کوم څوك ـ کوم چا یا له پښتو ریان چیوایی : چا ظالم می ژبه پریکړه •

ـ سړی : پرڅیزنوم او ستاینوم سربیره یوناټیك نومځري هم دي او تر بلن پیره
پوري په ټولو پیرووکی راځی لکه سړی دي هڅه کوي چی څوك تري ونه خوریږي • بایـد
له سړي له لاسه داسی کارونه شی چی وروسته پري پښیمان شی ـ دلته د سړي هره هیله
نه پرځاي کیږي سړي دي سړي ته ګوري او بیا دي ورسره هماغسی چلند کوي • لومړي دي
سړی سړي ته پوزه ورکوي او که ورسی کړ بیا دي تري ژرنه غواړي ـ وسړیه ستاله چاسره
څـــه کار ! له پیژند (یو) او ځینی نورو ناټیك نو مځرو سره تړنګونه ( ترکیبونه ) هم

جوړوي لکه یو سړی د بخوات را د زومی — یوه سړي ته رازویل په کارنه دي — هرسړي (خو هر سړي پیدا دي خپل خپل کار لره که — خوشال) — هیڅ سړي نه بنکاري — سړي سړي سم کارنه نه پوهیږ دي — له خوازك پرته بل سړي مي ونه لید — څوك سړي زمو ز خواته راځي — کوم سړي چي د سړي نه خوښیږي ی شه په کار چي پرمخه ورځي — څه سړي غرنځي را د زومی ◦ یونیم سړي خپل زوند ته پام نلري — کوم نیم سړي می ونه لید — کوم یونیم سړي راشي ◦ ◦ ◦ ◦ ◦ ◦

— پلاس او بیستانی هم له عربی او د ري (فلان — بستان) څخه پښتوشوي ناټیك نومځوي بنکاري ◦ ◦ ◦ ◦ ◦ ◦

— ګډ تولنومځــــــري (اشتراکی ضمیر) ؛ پښتو د د ري غوندي له (( خپل )) څخه پرتوروپلارو سوییره د بیره تولنومځري (ملکي ضمیر) کار هم اخلي اود اچي د د رووار و وګړ و لپاره راځي نو ګډ تولنو مځري (مشترك ملکي ضمیر) بلل یی غوره دي ◦ لکه ؛ شپون خپلــه رمه پیایی — رمه خپل شپانه پیژني — هرڅوك په خپل کار کی خوښ دي — ځینی خلك خپل ځان نه پیژني — ځلمی په خپله خوړه کی کار کوي — خوازك خپل کورته ناوخته ځی — خوازك له خپل ورور سره بنارته ولاړ — بزیله خپلو ملګرو څخه مننه وکړه — بریالی له خپلـــــی خوښی څخه نه اوړي ◦ ځینی پخپله ګناه نه پوهیږي خپل زبیرند او ناټیك ستاینوم په توګه هم کارول کیږي لکه خپله لاسه کله الاسه ! چی بیا هم یکی د تول (ملکیت) جاج (مفهوم) پروت دي ◦ په تکراري ډول لکه په مخنی بیت کی (هو هرسړي پیدا دي خپل خپل کار لره که) خپل د نوزي اوییزله مخی بشپړ اوړون لري ◦ خودګـــیهی له مخی نه ◦ له (( ځان )) سره غبرګون نوم ځوي جوړوي لکه خپل ځان بی ژوبل کړ او له دي سره سره همغه تولوالی اوییژندوالی د نده هم شرګند وي ◦

— تول — ځانګړي نومځري (شخصی — ملکی ضمیرونه) چی دغښتلـــیوتو لنو مځرو اوغښتلیو ځانګړ و یا نغوتنو مځرو په پرځای کیږ و سره جوړیږي اوپه دي توګه پرپوهوخت

د دوو دوو نو مخرو د نده پرځای کوي له همدې کبله د وه ار خیزاو رون لري او هغـــه هم د نوزي ــ ګڼــې ــ پیرا و وګړیله مخې ځانګړي ورسره یوا ځې په د ریم وګړي اړه لري • لکـــه :

۱ــ تول نومخري ــ یوګړي ځانګړ نومخري :

| ګڼه / وګړي | یوګـــړي | ډیرګـــړي |
|---|---|---|
| ۱ | هغـــه | زموز دي ــ هغه ( د ه ــ هغه) |
| | هغـــه | زموز دا ــ هغه ( دې ــ هغې) |
| | زما دي ــ هغه( د ه ــ هغه) | |
| | زما دا ــ هغه( دې ــ هغې ) | |
| ۲ | ستا دي ــ هغه( د ه ــ هغه) | ستاسی دي ــ هغه( د ه ــ هغه ) |
| | ستا دا ــ هغه( دې ــ هغې ) | ستا دا ــ هغه( دې ــ هغې ) |
| ۳ | د ده دي ــ هغه ( د ه ــ هغه) | د دوي دي ــ هغه( د ه ــ هغه ) |
| | د هغه دي ــ هغه( د ه ــ هغه) | |
| | د دې دا ــ هغه ( د ه ــ هغې ) | د دوي دا ــ هغه( دې ــ هغې ) |
| | د دې هغه ــ هغه ( د ه ــ هغې ) | |

۲ــ تولنو مخري ــ ډیرګړي ځانګړ نومخري :

| ګڼـــه / وګړي | یوګـــړي | ډیرګـــړي |
|---|---|---|
| ۱ | زما دوي ــ هغوي | زموز دوي ــ هغوي |
| ۲ | ستا دوي ــ هغوي | ستاس دوي ــ هغوي |
| ۳ | د ده دوي ــ هغوي | د دوي دوي ــ هغوي |
| | د هغه دوي ــ هغوي | |
| | د دې دوي ــ هغوي | |
| | د هغې دوي ــ هغوي | |

٣ـ تولنو محوري اتباع یوګړي نغوتنو محوري :

| ګڼه / وګړي | یوګړي | ډیرګړي |
|---|---|---|
| ١ | زما دغه ـ دغه ـ دغې | زموږ دغه ـ دغه ـ دغې |
| ٢ | ستا دغه ـ دغه ـ دغې | ستاسې دغه ـ دغه ـ دغې |
| ٣ | د ده دغه ـ دغه ـ دغې | د دوي دغه ـ دغه ـ دغې |
| | د هغه دغه ـ دغه ـ دغې | |
| | د دې دغه ـ دغه ـ دغې | |
| | د هغې دغه ـ دغه ـ دغې | |

٤ـ تولنو محوري لرې یوګړي نغوتنو محوري :

| ګڼه / وګړي | یوګړي | ډیرګړي |
|---|---|---|
| ١ | زما هغه ـ هغه ـ هغې | زموږ هغه ـ هغه ـ هغې |
| ٢ | ستا هغه ـ هغه ـ هغې | ستاسې هغه ـ هغه ـ هغې |
| ٣ | د ده هغه ـ هغه ـ هغې | د دوي هغه ـ هغه ـ هغې |
| | د هغه هغه ـ هغه ـ هغې | |
| | د دې هغه ـ هغه ـ هغې | |
| | د هغې هغه ـ هغه ـ هغې | |

٥ـ تولنو محوريډيرلرې یوګړي نغوتنو محوري :

| ګڼه / وګړي | یوګړي | ډیرګړي |
|---|---|---|
| ١ | زما هوغه ـ هوغه ـ هوغې | زموږ هوغه ـ هوغه ـ هوغې |
| ٢ | ستا هوغه ـ هوغه ـ هوغې | ستاسې هوغه ـ هوغه ـ هوغې |
| ٣ | د ده ،، ،، ،، ،،<br>د هغه ،، ،، ،، ،،<br>د دې ،، ،، ،، ،،<br>د هغې ،، ،، ،، ،، | |

او همداسی د دویم توك ډیرگړي هم اوړون مومی ۰ دادي د تول ــ ځانگړنومځرو د پوره ځرگندتیا لپاره څو بیلگیزي غونډ لی (جملی) وړاندي‌کوو :

ایمل : زما زوي ناروغ دي ۰

خوشال : زما هغه هم ناروغ دي ۰

ایمل : زمازوي ښوونځی ته ځی ۰

خوشال : زمادي لا کوچنی دي ۰

ایمل : زما وراره ښوونځی ووایه ۰

خوشال: زما هغه هم ووایه ۰

ایمل : زما ماما اس واخیست۰

خوشال : زما هغه هم واخیست ۰

ایمل : زماورور ځلمی ته یو لیکی ورکړ ۰

خوشال: زماده هم هغه ته یو لیکی ورکړ ــ زما هغه هم هغه ته یولیکی‌ورکړ ۰

ایمل : زمالیکی ځلمی واخیست۰

خوشال : زما دازمري واخیست ــ زما هغه زمري واخیست ــ زما داهم ده واخیست ــ زما هغه هم هغه واخیست ۰

ایمل : زما ورځنی گټــه سل افغانی ده ۰

خوشال : زماادوه سوه افغانی ده ۰

ایمل : دده‌کور لري دي ۰

خوشال: دده‌دا نژدي دي ــ د ده هغه هم لري دي ۰

ایمل : دهغه مور ناروغه ده ۰

خوشال : دهغه هغه هم ناروغه ده ــ دهغی هغه هم ناروغه ده ۰

ایمل : ددې ورور زما ټولگیوال دي ۰

خوشال : ستادي بیا زما ټولگیوال دي ۰

ایمل : زما مور وپلار مړه دي .

خوشال : ستا هغه ژوندي دي .

ایمل : زما مور وپلار کوم رسمي کار نه کاوه .

خوشال : زما هغوي هم نه کاوه (زما دوي هم نه کاوه) .

ایمل : زموږ کلی له ښاره لرې دی .

خوشال : زموږ دا هم له ښاره لرې دی .

ایمل : زموږ هغه دومره لوی نه دی .

خوشال : زموږ دا متاسو له هغه څخه ډیر لوی دی .

ایمل : د دویم ټولګی شاګردانو کتابونه نه دي اخیستي .

خوشال : د لومړي ټولګي هغوي هم نه دي اخیستي .

ایمل : د دریم ټولګي شاګردانو خپل کتابونه بیرته ورکړي دي .

خوشال : د څلورم ټولګي هغوي خپل هغه بیرته نه دي ورکړي .

## لومړي کړاوونـــه ( تمرینونـــــه)

۱ــ پښویه یا ګرامر دژبپوهنې کومه څانګه ده او له څه نه غږیږي ؟

۲ــ پښویه د څه لپاره لوستل کیږي ؟

۳ــ پښویه کومې څانګې را اخلي ؟

٤ــ غږ پوهه څه ته وایي ؟

٥ــ دژبې لومړنې ساده توکونه کوم دي ؟

٦ــ دپښتو ارزښتناک غږونه یا اوازونه پرڅو ډلـو ویشل کیږي ؟

۷ــ نیمواک اوازونه څو دي اوڅنګه پیژندل کیږي ؟

۸ــ خج څه ته وایي او پرڅو ډوله دي ؟

۹ــ ایا خج په ماناکې ونجون ( بدلون ) راوړلاي شي ؟

۱۰ــ دالاندې توټنه په غږیزه (فونیمیکه) ابیڅــې ولیکئ او خجونه یې نښه کړئ !

داخوجوته او منلې خبره ده چې پښتو دپښتونخوا یوه بډایه او لرغونې ربه ده چې دزرګونو کلونو په اوږدوکې پرې پوهـول را پول شوي دي . ډیر پوهان او لیکوال پکې منځ ته راغلي دي که څه هم ډیري تودې سرې پسې لیدلې دي ، خو بیاهم دیوې غرنۍ ژبې په توګه کرور ه پاتې شوې او په هر تورتم پسې یې رڼـا راغلې ده . داپه ټینګه ویلاي شو چې نن سبا پښتنې تولنه راخوځیدلې ده او له دې خوځون سره به یې ژبه هم هرو مرو مخ پرورړاندې د رومې .

## دویم کړاوونـــــه

۱ـ ګړ پوهه له څه نه غږیږي ؟

۲ـ ګړ پوهه لومړی پرکومو دوو څانګو ویشل کیږي ؟

۳ـ داوړیدونو ګړ پنو څانګه کومې برخې را اخلی ؟

٤ـ نو مګړ پوهه له څه نه غږیږي ؟

٥ـ دنوم اوړون ( اسمی ګردان ) اړخونه کوم دي ؟

٦ـ نومځري ( ضمیر ) دڅو اړخو له مخې اوړون مومی ؟

۷ـ نوم څه ته وایي او کومې څلور ډلي را اخلی ؟

۸ـ څیز نوم او ستاینوم سره څه توپیر لري ؟

۹ـ نومځري څه ته وایي او په پښتو کې پرڅو ډ لو ویشل کیږي ؟

۱۰ـ په لاندې ټوټــه کې هر ډول نوم ښیــه کړي ، او ونوموئ :

بارک له ما څخه یو لیکی وغوښت ، خو ما تري وژغوره ، ځکه ټولګی یې را څخه بیل دي ، په ښوونځی کې ددې دادریم کال دي او زما دادویم ، له یوه ټولګیوال سره یې هم چال چلند سم نه دي ، دي خورا چرغلګردي او دیوه بل خبریال ، دیوه خبره یوه ته وړي او دبل بل ته ، کله یې له یوه سره اخ وډب وي او کله یې له بل سره ، څوک تري ارام نه دي له هرچا سره چې یو ځل کښیني بیــا یې نوروته ویاراویدوایي ، دغله په غره کې ځاي نشتــه ، پربدبوټــي سپیهم متیازي نه کوي ، هرسړي ته په کاردي چې خپل کارته پام ولري او دبل په کار کې ځان ګډ نه کړي ، زینیاران وایي :

دخواري کونډې زویه ــ خپلې روټــې ژویه !

## دکړ ګړپوهه یا دفعل صـــرف ( CONJUGATION )

په کړ ګړپوهه کی دکړ له راز راز بڼولونو او اوړونو نو (ګردانونو ) څخه خبري کیږي ٠

کـــــــــړ : هغه وییں (لغت ) دي چی د زمانی په چوکاټ کی دیو څه پیښیدنه څرګندوي ٠ داچی دکړ جاج (مفهوم ) بی دزمانی له ملګرتیا نه پوهید ل کیږي نو ځکه کړ ته مهال ویں ( دزمانی لغت ) هم وایں ٠

کړنو موونکـــــــں :

په پښتو کی یو کړ په مصدر(ناپاي )نومول کیږي له همدي کبله مصدر ته کړنو موونکی وایو٠ په عربی کی یو کړ دخپل تیر مهال (ماضی ) د دریم وګړي په یو ګړي ځیل (مفرده صیغه) یادیږي لکه ضرب – نصر٠ پخوا په المانی او پارسی کی کړنو موونکی پخپله دکړ ریښه وه خو اوس په دغو دواړو ژبو کی دپښتو غوندي یو کړ دخپل مصدر په نامه نومول کیږي لکه: تون – کردن – کول ٠٠٠٠٠٠ دمصدر جوړښت اودنده : په پښتو کی یو مصدر په یوه یوګړیز (یومورفیمز) روستاړي (ل ) پیژندل کیږي ٠ دغه روستاړي په کړولی (فعلی ریښی )پوري سیده نښلی په دي اړ (شرط ) چی کړ ساده یاپه بله وینا یو ګړیز یایومورفیمیزوي او که بیلښتی او ترښتی (اشتقاقی او ترکیبی ) ري نو مصدري روستاړي ( ل ) په مونډ (تس )پوري نښلی ٠ سیده په کړولی پوري لکه : موندل – وهل – خوړل په مونډ پوري لکه : غوړځول اوبول – کښیناستل – پریوتل – یو ځای کول – لاسته راوستل – تود تود کیدل – نیغ نیغ کیدل پخلا کیدل یا کول ٠٠٠٠٠٠

دمصدر دنده هم داده چی یو کړ ونوموي ، کټ مټ لکه ونه – ډبره – سړي –کندهار٠ داچــــــں مصدر دیو څه کړنه او پیښیدنه څرګندوي نودکړنی اوپیښیدنی نوم دي نه پخپله کړ ځکه په زمانی پوري اړه نلري ٠ داچی دوډیزو(عنعنی ) ژبپوهانو مصدر له خپلی ویپیزي (لغوي )مانا سره سم دکړ دبیلا بیلو بڼو (زیږنده )اوبا بنسټ بللی دي یوبی سروبوله

خبره ده. د کړ بنسټ هماغه کړولی ( فعلی ریښه) یا کړ سوند (فعلی تنه) ده چې

په پایـــــه مصدرتري د (ل) پـــه ورنښلـــــو لـــو جوړیـــــږي.

که مصدر په رښتیا سره د ټولو فعلی بېلونو او بڼو بنسټ اوریزنده وای نو باید په هره بڼه

کې روغ رمټ پاتې دای حال دا چې موږ ګورو چې یوازې کړولی (فعلی ریښه) یا موندی ( فعلی تنه)

په هره بڼه کې خپل شتوالی ساتلای شي لکه وهـ په وهم — وهو — وهې — وهي — وهې

یا وواهه — واهه — وهلی دي او داسې نور وکي. له دې کبله د مصدر ریځای کړنوم یا کړنوموونکی

ویل په کار دي ځکه هماغه یې دنده ده د (ناپای) په نامه یې یادول چې د لاتیـــــن

(I N F I N I T I V E) اړونه ده. هم دومره ناوړه نه ایسي ځکه یوه ناپایه او ناټاکلی

کړنه او پېښېدنه څرګندوي او ښيي، نه په وګړي اړه لري، نه په زمانې او داسې نورو ګردانې

اړخونو. که د مصدر نوم نه پرکړنوم واړوو ښايي له نورو ټېرو کړنو مونو سره یې ګډ ون راشي

لکه خوړنه — خوړانه — خوړنګ — خوړونکی — خوړلی — خوړ — خوړ — خوړنده — خوړندي —

خوړکه او داسې نور چې د خوړل غوندې له خوړ او خوړولی (ریښې) څخه جوړ شوي دي.

پښتو مصدر د یوه نوم په توګه تل ټیرګړي نرینه دي او یوازې د پیر (حالت) له

مخې اوړون مومي لکه ټیرو (لوستلو) ستوماني کړم یا د عبدالقادر خټک په شعر کې:

مه شه خوښ د پادشاهی پرتخت (ختلـــو)

همیشـــه یې غم کوه د (پرېوتلـــــــو)

د کړ او ړونې توکونه او اړخونـــــه:

یو اوړون موندلی (ګردان شوي) کړ تر ډېره توکونو پورې په جولیز او ښکاره

ټول یا نا ښکاره ټول په خپل ځان کې ځایولای شي چې څه ناڅه د هماغو له مخې رازرازېښې

او اوړون مومي، او هغه توکونه دا دي:

۱ــ مخکړ: چې د کړیو بشپړوونکی او پلو ټاکونکی ټوک (جزء) ګڼل کیږي لکه

کښې — په کښېناستل، او کښې وتل اوړي — په پرېوتل او پرېوللي یا پرېښودل کې.

۲ــ ولی ــیا ریښه : چی د کړ ښتینی بنسټ دی لکه خور ــ یا خوړ ــ پهخورم ــ خورو ــ خوري ۰۰۰۰ او وخوړ ــ خوړ ای ــ خوړ لی او دا سی نورو کی ۰

ولی پرد وو ږولوده : یوه لومړ ن یا اوسمهال (حال ) ولی لکه خور ــ اغوند ــ بله دویمه یا تیرمهال (ماضی ) ولی لکه خوړ ــ اغوست ــ دواړي ولی په ګډه دیوه راز کړ اوړون (ګردان ) بشپړوي او سترمهال کړ (مستقبل فعل )کومه جلا ولی نلري بلکه هماغه او سمهال ولی یا لومړ ن ولی ورسره شریکه ده ۰ دویمه ولی پردي سربیره چی ګرد تیرمهال کړ ونه تري جوړ یږي د اوسمهال او اوسترمهال بیچار کړ ونه (مجهول افعال ) هم تري جوړ ښت مومی ۰ کړ نومونه بیا له دواړ و ولیو څخه لږ و ډیرمنځ ته را ځی د کړ نوموونکی یا مصدر جوړ ښت زیاتره تیرمهال ولی څخه دود لري لکه خوړ ل ــ لیدل ــ تلل ۰ دلته لیدل له لید ــ ولی څخه جوړ شوي چی دویمه یا تیرمهال ولی بلل کیږي او لومړ ن یا اوسمهال ولی یی (وین ــ ) ده دغو ولیو پارس انډولونه دید ــ او وین ــ دي ۰

۳ــ مونــــډ :چی دمخکړ یا ولی اووګړیزي پایلی (شخصی خاتمی ) ترمنځ ښل کوم توک په یو ځای کولو منځ ته راځی په بله وینا که له یوه تیرمهال ګردان شوي کړ څخه وګړیزه پایله کومه پایله وغورځول شی ۰ پاتی برخه یی مونډ بلل کیږي ۰ په دي توګه مونډ زیاتره د تیرمهال کړ بنسټ جوړ وي اوپه اوسمهال کی په ساده ډول له صفر یا ولی برابر دي لکــــه : کښیناست ــ په کښیناستم یا کښیناستو او زبږید ــ په زبږیدم ــ زبږیدو وزبږیدم ــ وزبږدو وزبږیدای یا اغوست ــ په اغوستم ــ اغــوسته ــ واغوست ــ ۰۰۰۰۰ کی ۰ د اوسمهال مونډ لکه څملو په څملوم ــ څملوو ۰۰۰۰۰ کی ۰ که په ځینو ګړدود ونکی کښیناستلم ــ کښیناستلــــو ــ زبږیدلم ــ زبږیدلو ــ وزبږیدلو ــ او داسی نور ویل کیږي نو مونډ یی بیا کښیناستل ــ او زبږیدل ــ راځی ۰ البته په ځینو ګړ دودونو کی دغه راز (ل ) د مونډ ضروري توک ګڼل کیږي او غورځول یی مانیزه نیمګړ تیا را ولی لکه ماویاله وکینله ما سندره وویله ماوزمه ورتله ۰۰۰ مګر که وکینه اوولوسته وویل شی مونډونه یی هماغه کیند او لوست راځی ۰

٤ــ کړتــــر : چې زیاتره دیوه خپلواك اواز په بڼه د مونږ اووګړیزي پایلـــې ترمنځ کله کله پیښیږي لکه زورکی په کښینا ستم او پرېوتم کې ۰ مونږ پرمخکړ اوولس سرپیره دځیل ( ٦ ) لیزد، ( ۷ ) مهال ( ۸ ) اولیزند چار ( ۱۲ ) توکونه او چارونه هم را اخلی ۰

٥ــ دود : چې دکړ دڅرګندولو ډول ښیـــې لکه خبري او ناخبري (غو ښتنـــې ـــ پوښتنې ـــ هیښنی ـــ امري ـــ ارمانی ـــ ګومانی ـــ ټینګاري یا تاکیدي ـــ شرطی همیشنی ـــ ورزدنی یا اعتیادي) لکه : ماډوډۍ وخوړه وخوړاي ـــ وخوړه ۰ اوداس نور ۰

٦ــ ځیـــــل : چې دکړ (مسند) او کړندیاکړي (مسند الیه) ټاکه کوي ۰ په دې مانا چې کړ چاروال (معلوم) دي که بیچار (مجهول) اویا منځوال (انعکاس). چاروال لکه ببرك زمري وهی ـــ زمرك وهل کیږي ـــ زمرك ځان وهی ۰ په لومړي غونډه له (جمله) کـــې کړپه کړند (ببرك) استناد کوي په دویمه کې په کړي (زمرك) اوپه دریمه کې هم په کړند اوهم په کړي چې دواړه هماغه یو وګړي (زمرك) دي ۰ ځیل په جولیز اوناجولیز ډول دمونږ وتوك دي ۰

۷ــ لیزد : په دې مانا چې کړ لیزند (متعدي) دي که نالیزند (لازمی) لکه سمندر سندري وایی او سمندر راغی ۰ لیزد په جولیز یا ناجولیز (غیر شکلی) ډول دمونږ یوه برخه جوړوي ۰

۸ــ مهـــــال : چې دکړمهالی یازمانی اړیکې (ارتباط) څرګند وي په دې مانا چې کړ په کوم مهال کې پیښ شوي دي لکه څوکري ولاړ ـــ څوکري ځی ـــ څوکري به ولاړ شی ۰ دپښتو کړ مهالونه په تولیز (عموم) ډول دري دي :

اــ تیرمهال : چې په بشپړ ـــ نابشپړ ـــ لنډ اولیروښل کیږي ۰

۲ــ اوسمهال : چې په بشپړ اونابشپړ وېشنه مومي ۰

۳ــ اوسترمهال : چې داهم دوه ډوله لري بشپړ اونابشپړ ۰

دمهال توك په مونږ کې راځی لکه په ودریدم یا ودریدلم کې (د) یا (دل) اوپه ودریږم یا ودریږو کې (ږ) ۰

۹ــ وګړي یاشخص : چې کړنند یاکړي لومړي وګړي (متکلم) دي دویم وګړي (مخاطب) یادریم وګړي (غایب) ... لومړي وګړي (زه ــ موږ) ــ دویم وګړي (تهـ تاسې) اودریم وګړي (دي ــ دوي) . دوګړي نښنـه چې وګړیزه پایله بلل کیږي دکړو روستی برخـــه جوړوي لکه (م) او (و) په راغلم اوراغلو کې .

۱۰ــ نوزي یا جنس : چې وګړي نرینه دي که ښځینه . په پښتو کړ کې یوائې د دویمی ولی په اوړون کې دغه توپیر کیږي لکه شینکی راغله ــ ژمی راغی چې دلته (زوړ) اوي نوزیز توکونه دي په دې توګه نوزیز توک له وګړیزي پایلې او ګڼې سره ګډ او یای ته راځي .

۱۱ــ ګڼـه یاعدد (افراد وجمع) : چې وګړي یوګړي (مفرد) دي او که ډیرګړي (جمع) . یوګړي لکه هلک راغی ډیرګړي لکه هلکان راغلل . ګڼـه یوائې په لومړي او دویم وګړي کې توپیریږي نه په دریم کې لکه هلک ځي ــ هلکان ځي .

۱۲ــ لیږندچار یا صناعیت (کوزاتیف) دکړ هغه برخه یاتوک دي چې په مونږ کې راځي او یو لیږندکړ دویم ځلي لیږند (متعدي) کوي لکه دپارسي په خوراندن یاخواباندن کې (ان) پښتو سیمدلاسه دننګرهار ګړدود او خوشال خټک په استاد یوائې دوه لیږندچار کړونه لري لکه خوړول (خوراندن) او ویېول (ګویاندن) . په نورو کړونو کې دغمراز ځرګندونـه یوائې د ییکو (اداتو) په وسیله ترسره کیږي لکه ماپرځلمي خیله خبره ومنله (من برځلمي سخن خود را قبولاندم) په دې توګه یو لیږند چارکړ دوه کړنده (فاعله) او دوه کړیه (مفعوله) لري . لکه په پورتنی بیلګه کې ما او ځلمی کړندونه او خبره کړې ده او په یو مثال کې بیا ځلمی او خبره دواړه کړي دي . ځینې حکمی لیږندکړونه بې له ویکو هم دلیږندچارند ه پرځاي کوي لکه ماوژړوله ــ ماوخندوله او داسې نور . یا داسې هم ویل کیږي : ځلمی دورخانې په خبرو راوسته مانا داچې خبري یې پرې وکړي .

۱۳ــ دنفي یانهي توک (نه) یا (مه) چې زیاتره دمخکړ یا ترښتي او ویلښتي توک ترمنځ راځي لکه : کښې نه ناست . پانه څید . وانخیست . رانغی . مه خوره ......

کړاو (تمرین ):

| را | پا خ | یـــــــد | ـ زوړکی | ؟ |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | ۲ | ٦ـ۷ـ۸ـ۱۲ | ٤ | ٥ـ۹ـ۱۱ |
| | | ۲ | | |

یادونه : نوزي (۱۰) په یوه بله بیالګه (راپاڅیدله) کی مومو چی له ۹ـ۱۰ او ۱۱ سره ګډ ون لري ۰ همدارنګه دنفی توك (۱۳) په (راپانه څیدله) کی راتلای شی ۰

اوړ ونونــــــه (ګردانــونـــــه)

لومړي ـ تیرمهــال : چی له دویمی یا تیرمهال ریښی څخه دنو موړ و دیالس ګونو توکونو او اړخونو په پام کی نیولو سره جوړ یښت او اوړ ون مومی ۰

الف ـ له لیزند خوړ ـ دویمی ولی څخه ۰

۱ـ خبـــري ۰

۱ : بشپړ تیرمهال (مطلقه ماضی )

چاروال

| ګڼه / وګړي | یوګـــړي | ډیرګـــړي |
|---|---|---|
| ۱ | ما وخوړ ـ وخو ړ ه<br>وخوړ ل ـ وخــوړي | موږ وخــوړ ـ وخو ړ ه<br>وخوړ ل ـ وخو ړ ي |
| ۲ | تا وخوړ ـ وخــو ړ ه<br>وخوړ ل ـ وخو ړ ي | تاسی وخو ړ ـ وخوړ ه<br>وخوړ ل ـ وخو ړ ي |
| ۳ | ده ـ دي وخو ړ ـ وخوړ ه<br>وخوړ ل ـ وخــــوړ ي | دوي وخوړ ـ وخــــوړ ه<br>وخوړ ل ـ وخــــو ړ ي |

بیچار

| گڼه / وگړي | یوگــــړي | ډیرگـــــــړي |
|---|---|---|
| ۱ | زه وخوړل شـــو م | مو ږ وخوړل شــــو |
| ۲ | ته وخوړل شــوې | تاسی وخوړل شوئ ـ سوابــت |
| ۳ | دي وخوړل شـــو<br>دا وخوړل شـــوه | دوي وخوړل شـــــول<br>دوي وخوړل شـــــو ې |

منځوال

| گڼه / وگړي | یوگـــړي | ډیرگـــــړي |
|---|---|---|
| ۱ | ماځان وخــــوړ | موږ ځان وخوړ ـ ځانونه وخو ړ ل |
| ۲ | تاځان وخـــوړ | تاس ځان وخوړ ـ رر رر |
| ۳ | ده ـ دې ځان وخوړ | دوي ځان وخوړ ـ رر ر |

یادښت : لکه څنگه چې موپا سولیدل په تیرمهال کی چاروال کړ دبیچارکړ غوندې دکړي (مفعول) تابع دي نه دکړند لکه ماخټکی وخوړ ـ ما خټکی وخوړل ـ ماهندوانـــــــه وخوړه ـ ما هندوانی وخوړې ۰۰۰ داچی ځینی بهرنی پښتوپوهان دپښتو لیزند تیرمهال کړ (متعدي ماضی فعل) تل بیچار (پاسیف) بولی ۰ د دوکتور تزي په وینا یوه بی سروبوله خبره ده ځکه چاروال لیزندیی نه بیچار هغه سره توپیرلري او هغه داچی دکړند پخپله دکړ ایښی (مسندالیه) دي ۰ او کړند پیر هم ښیی نو باید داس وویل شی چی دپښتو دتیرمهال چاروال لیزندکړ (ماضی متعدي معلوم فعل) پایلی له کړي (مفعول) سره سمون لري ۰

۲ : نابشپړ تیرمهـــال (همیشنی ماضی) : نابشپړ تیرمهال دبشپړوالی (مطلقیت) له (و) پرته نورد بشپړ هغه غوندي جوړ ښت مومی بیچار ـ یی دبیچارکړ نوم په لنډه ون (خوړ ل) دمرستیالکړ (کیدل) په ملگرتیا جوړیزي اووگړیزي پایلی هم په دغه مرستیال کړپوري نښلی :

چاروال

| ګڼه / وګړي | يوګـــړي | ډيرګـــړي |
|---|---|---|
| ۱ | ماخوړ ـ خوړه ـ خوړل ـ خوړي | موز خوړ ـ خوړه ـ خوړل ـ خوړي |
| ۲ | تاخوړ ـ خوړه ـ خوړل ـ خوړي | تاسی رر رر رر |
| ۳ | ده ـ دي رر رر | دوي رر رر رر |

بيچار

| ګڼه / وګړي | يوګـــړي | ډيرګـــړي |
|---|---|---|
| ۱ | زه خوړل کيدم | موز خوړل کيـــــدو |
| ۲ | ته خوړل کيدي | تاسی خوړل کيدئ ـ کيداست |
| ۳ | دي خوړل کيـــده<br>داخوړل کيـــــده | دوي خوړل کيده ـ کيـــــدل<br>دوي خوړ کيدي ـ کيدلـــــی |

منځوال : ماځان خوړ ـ موز ځان خوړ ......

۳ : روز دنی (اعتيادي) تيرمهال : داهغه رازکړدي چې دهيشه والی ترڅنګه د روز دتيا (اعتيادي) جاج (مفهوم) هم راخلی په دي توګه داراز کړ ته روز دنی هميشنی کړ هم وبلاي شو . له هسی عادي هميشنی کړ سره ين توپير داچی ترکړ دمخه پري د (به) وبيکی هم زياتيږي .

چاروال

| يوګـــړي | ډيرګړي |
|---|---|
| مابه خوړ ـ خوړه ـ خوړل ـ خوړي | موز به خوړ ـ خوړه ـ خوړل ـ خوړي |
| تابه رر رر رر رر | تاسو به رر رر رر رر |
| ده ـ دي به رر رر رر | دوي به رر رر رر رر |

| | | يوګــړي | ډيرګـــړي |
|---|---|---|---|
| بيچاړ | ١ | زه به خوړل کېدم | موږ به خوړل کېدو |
| | ٢ | ته به خوړل کېدې | تاسې به خوړل کېدئ ـ کېدا ست |
| | ٣ | دی به خوړل کېده | دوي به خوړل کېده ـ کېدل |
| | | دا به خوړل کېده | دوي به خوړل کېدې ـ کېدلې |

منځوال لکه دا به ځان خوړ ......

٤ : لنډ تېرمهال (قريبه ماضي) : د دې مهال کړ د چار او پېښنګ له مخې کله داسې وي چې په تېرمهال کې يو مخيز بشپړ شوي وي او يادا چې تر اوسمهال يې هم څه اوږدوالی موندلی وي • رغېدنګی يې دا ډول دی چې له بيچاړ کړ نوم (مفعولي صفت) ((خوړلی)) سره مرستيالکړ (ول) په اوسمهال کې اوړون مومي • په بيچاړکې يې پردې سربېره دويم مرستيالکړ (کېدل) يا (شول) ورسره هم اوړون کوي او د دې لپاره چې وګړيزي پايلې په دواړو مرستيالکړونو پورې نښلي نو دا ښائي لپاره د بيچاړ کړ نوم پايلې ته اړ تيا نه پاتېږي همدا راز په لر تېرمهال بيچاړکړ کې هم د بيچاړکړ نوم (خوړلی) يا يې غوڅې او د (خوړل) په بڼه پاتېږي چې ځينې د و ديز پښـتو پوهان (ګرامرپښتيان) يې له (مصدر) سره ګډوي او اشتباه کوي •

| | يوګــړي | ډيرګړي |
|---|---|---|
| ١ | ما خوړلی دی ـ خوړلې ده ـ خوړلي دي ـ خوړلې دي • | موږ خوړلي دي ـ خوړلې ده ـ خوړلي دي • |
| ٢ | تا رر رر رر رر | تاسې رر رر رر رر رر رر |
| ٣ـ | ده ـ دې رر رر رر | دوي رر رر رر رر رر رر |

بیچار

| | یوګړي | ډیرګړي |
|---|---|---|
| ۱ | زه خوړل شوي– شوې یم | موږ خوړل شوي– شوې یو |
| ۲ | ته خوړل شوي – شوې یې | تاس خوړل شوي – شوې یئ، یاست |
| ۳ | دی خوړل شوی دی<br>دا خوړل شوې ده | دوی خوړل شوي دي<br>دوی خوړل شوې دي |

منځوال لکه ما ځان خوړلی دی ........

۵: لرتیرمهال (بعیده ماضي): د لرتیرمهال کړ ته هغه وخت اړتیا پرېوځي چې وروسته تري بشپړ تیرمهال یا لنډ تیرمهال کړ پیښ شوی وي. یا په بله وینا: لرتیرمهال کړ یوله دغو نورو ټولو تر کارېدنې (استعمال) وروسته کارول کېږي لکه چې وایي:

ته پرلسو بجو راغلی (بشپړ) او زه پرنهو بجو راغلی وم (لـــر)

یا: ته پرلسو بجو راغلی یې (لنډ)

د لر تیرمهال اوړون نور د لنډ هغه غوندي دي خو دلته ورسره مرستیالکړ (ول) هم په لره زمانه کې اوړون مومي:

چاروال

| | یوګړي | ډیرګړي |
|---|---|---|
| ۱ | ما خوړلی و – خوړلی وه – خوړلی وو – خوړلی وې | موږ خوړلی و – خوړلی وه – خوړلی وو خوړلی وې |
| ۲ | تا رر رر رر | تاس رر رر رر رر |
| ۳ | ده – دې رر رر رر رر | دوی رر رر رر رر |

| | یوګړي | ډیرګړي |
|---|---|---|
| ۱ | زه خوړل شوي– شوې وم | موږ خوړل شوي– شوې وو |
| ۲ | ته رر رر رر | تاس رر رر رر وي – واست |
| ۳ | دی خوړل شوي و<br>دا خوړل شوې وه | دوی خوړل شوي وو<br>دوی خوړل شوې وې |

منځوال لکه ماځان خوړلی و . . . . . . . . . . . .

٦ : گومانی تیرمهال (احتمالی یا شکیه ماضی) : هغه کړ ته وایی چی کیدنگ یی گومانی او ارنگمن (مشکوک) وي . رغیدنه یی داسی کیږي چی لمه بیچارکړ نوم (خوړلی) یا (خوړل) سره (به) ملتیا موږی او په چاروال کی یواځی د (ول) مرستیالکړ یواځینی بڼه (وي) او په بیچارکی ورسره (شول) او د (ول) ټولی اوسمهال بڼی اوړون کوي . او د (وي) په بڼه یواځی په دریم وگړي کی (گوندي) یا (ښایی) غوندي گومانی وییکی هم ورسره ټولیز ډول مل کیدای شی .

| | | یوگړي | ډیرگړي |
|---|---|---|---|
| چاروال | ١ | ما به خوړلی — خوړلی — خوړلی — خوړلی وي | موږ به خوړلی — خوړلی — خوړلی — خوړلی وي |
| | ٢ | تا به رر رر رر | تاسی به رر رر رر رر |
| | ٣ | د ده — د دې به رر رر رر | د وي به رر رر رر رر |

| | | یوگړي | ډیرگړي |
|---|---|---|---|
| بیچاړ | ١ | زه به خوړل شوي — شوې یم | موږ به خوړل شوي — شوې یو |
| | ٢ | ته به رر رر رر یی | تاسی به رر رر رر یی — یاست |
| | ٣ | دي به خوړل شوي وي | دوي به خوړل شوي وي |
| | | دا به خوړل شوې وي | دوي به خوړل شوې وي |

منځوال لکه : ما به ځان خوړلی وي . . . . .

۷ ؛ ارماني تیرمهال (تمنایی ماضي) : چې دیوه ارمان څرګندونه کوي او د دود له مخې په بشپړ تیرمهال ، نابشپړ تیرمهال ، نژدې تیرمهال اوګوماني تیرمهال پوري اړه لري :

۱ــ ارماني بشپړ تیرمهال (تمنایی مطلقه ماضي) چې درغیدنې له مخې په بشپړ تیرمهال اړخاخ او مرخې (مفهوم او مطلب) له مخې په اوسمهال پوري اړه لري جوړیدنه یې دبشپړ تیا (مطلقیت) و ــ په دختا ري کولو او دچاروال لپاره دبیچارکړ نوم (مفعولي صفت) په اوز دولو او دبیچار لپاره دپاي په غوړځولو او دمرستیالکړ (شول) دبیچارکړ نوم په اوز دولو ترسره کیږي ، دغه رازیې دزیاتې څرګندتیا لپاره تر اینې ( (مسندالیه) دمخه یا وروسته د (کاشکې) وییکې دیوه نحوي توك په توګه هم ملګري کیداي شي ۰

| | | یوګړي | ډیرګـــړي |
|---|---|---|---|
| چاروال | ۱ | کاشکې ما وخوړ اي | کاشکې موز وخوړ اي |
| | ۲ | کاشکې تا وخوړ اي | کاشکې تاسو وخوړ اي |
| | ۳ | کاشکې ده ـ دې وخوړ اي | کاشکې دوي وخوړ اي |

| | | یوګـــړي | ډیرګـــړي |
|---|---|---|---|
| بیچار | ۱ | کاشکې زه وخوړ ل شواي | کاشکې مو وخوړ ل شواي |
| | ۲ | کاشکې ته وخوړ له شواي | کاشکې تاسو وخوړ ل شواي |
| | ۳ | کاشکې دي ـ دا وخوړل شواي | کاشکې دوي وخوړ ل شواي |

منځوال لکه ؛ کاشکې ما ځان وخوړ لاي ۰۰۰۰۰۰۰۰۰

۲ــ ارماني نابشپړ تیرمهال ؛ چاروال یې بې دبشپړ تیا ( مطلقیت ) له و ــ څخه دبشپړ هغه غونډ ي جوړیږي او بیچاریې بې له دغه (و) ارمرستیال کړ په بدلولو (شول پرکیدل ) دبیچار بشپړ هغه غونډي راځي ۰

| | | یوګــــړي | ډیرګــــړي |
|---|---|---|---|
| چاروال | ۱ | کاشکې ما خوړ اي | کاشکې موږ خوړ ا ي |
| | ۲ | کاشکې تا خوړ اي | کاشکې تاسې خوړ اي |
| | ۳ | کاشکې ده ــ دې خوړ اي | کاشکې دوي خوړ اي |

| | | یوګــــړي | ډیرګــــړي |
|---|---|---|---|
| بیچار | ۱ | کاشکې زه خوړل کیدا ي | کاشکې موږ خوړل کیدا ي |
| | ۲ | کاشکې ته خوړل کید اي | کاشکې تاسې خوړ ل کیدا ي |
| | ۳ | کاشکې دي ــ دا خوړل کیداي | کاشکې دوي خوړل کیدا ي |

منځوال لکه : کاشکې ما ځان خوړلاي .........

۳ــ ارماني لرتیرمهال ( تمنایې بعید ه ماضي ) چاروال داسې جوړیږي چې په بیچارکړ نوم ( مفعولي صفت ) پسې د مرستیالکړ ( ول ) بیچارکړ نوم او ږد ( واي ) راشي او بیچار یې د بیچارکي نوم په لنډ و لو او ( شول ) په زیاتو راشخ ته کیږي .

| | | یوګــــړي | ډیرګــــړي |
|---|---|---|---|
| چاروال | ۱ | کاشکې ماخوړلی ــ خوړلې ــ خوړلي ــ خوړلې ــ خوړلی واي | کاشکې موږ خوړلي ــ خوړلې ــ خوړلي ــ خوړلې ــ خوړلي واي . |
| | ۲ | کاشکې تا ﻻ ﻻ ﻻ | کاشکې تاسې ﻻ ﻻ ﻻ |
| | ۳ | کاشکې ده ــ دې ﻻ ﻻ ﻻ | کاشکې دوي ﻻ ﻻ ﻻ |

٢ــ اړوتی نابشپړ تیرمهال (شرطیه استمراري‌ماضی) لکه : که ما خوړ ــ که موږ خوړ یا که ما خوړلاي ــ که موږ خوړلاي ....

٣ــ اړوتی لنډ تیرمهال (شرطیه قریبه ماضی) لکه : که ما خوړلی دي ــ که موږ خوړلی دي یا ــ که ما خوړلی وي که موږ خوړلی وي ....

٤ــ اړوتی لر تیرمهال (شرطیه بعیده ماضی) لکه که ما خوړلی و ــ که موږخوړلی و یا ــ که ما خوړلی وي ــ که موږ خوړلی وي .....

په دې توګه هر اړوتی تیرمهال په څرمه (ضمنی) ډول ګومانی ــ ارمانی ــ هیبنتی ...... هم کیداي شی .

٩ : توانی تیرمهال (امکانی یا اقتداري ماضی) : چی دیوه کړ کیدون (امکان) یانه کیدون تري څرګندیږي . په پښتو کی په ساده جولسیز ډول یوازی بشپړ تیرمهال او نابشپړ تیرمهال توانی کیداي شی او همدغه دوه ډوله تیرمهالونه په څرمه توګه نور تیرمهالونه هم را اخلــــــی . رغیدنګ یی دبیچارکړ نوم دپاي غبرګڅږ په اوږدولو (خوړلاي یا خوړاي) او ورسره دمرستیالکړ (شول یا کیدل یادواړو) په ګردانولو تر سره کیږي .

١ــ توانی بشپړ تیرمهال . لکه : ما وخوړلاي شو ــ وخوړاي شو ــ تاوخوړلاي شوــ وخوړاي شو .....

٢ــ توانی نابشپړ تیرمهال ، لکه : ما خوړلاي شوــ خوړاي‌شو ــ تا خوړلاي شوــ خوړاي شو .....

اعتیادي : لکه : مابه‌خوړلاي شو ــ خوړاي شو ــ تابه خوړلاي شو ــ خوړاي شو .

١٠ : ټینګاري تیرمهال (تاکیدي ماضی) : چی دکړ دترسره کولو یانه ترسره کولو ټینګار (تاکید) څرګندوي او یوازی په بشپړ اونا بشپړ تیرمهال کی راتلاي شی :

١ــ ټینګاري بشپړ تیرمهال چی له بیچارکړ نوم سره د (به) ، (و) یا (واي) په ملګري کولو جوړیږي لکه : ما به خوړلی ویامابه خوړلی واي اویا خوړلی به‌ می و . خوړلی‌به‌می‌واي .

٢ــ ټينګاري نابشپړ تيرمهال چې له اعتيادي سره په اهنګ کې توپير لري لکه :
مابه خوړ يا مابه خوړ لای يا خوړ اي ٠ کله کله بويه يا (بايد ) هم په سرکی راتلاي شي او د پای ليکښه ين ندائيه راځي ٠

ــ هيښنی تيرمهال ( تعجبی ماضی ) ٠ چــې په هيښتيا ( تعجب يا تحير) سره څرګنديږي ٠ د اړاز کړ يواځې په اهنګ کې له خبريهغه سره توپيريږي ليکښنــه ين يوه بلښښنه (ندائيه) ده ٠

بيلګه لکه : ماوخوړ ! تاوخوړ ! ٠٠٠٠٠٠٠٠

(! : پوښتنی تيرمهال ( استفهامی ماضی ) چې ديوه کړ ن پيښيدنه يا نه پيښيدنه پوښتــې

داهم له خبري کړ سره يواځې په اهنګ کې توپير لري په دي توګه چې دخبري کړ اهنګ له عادي خج يا اهنګ سره اوار پيل موږ او تيټ پاي ته رسي اودپوښتنی دا له يوه زيات پياوړي خج ياپه بله وينا له يوه هوار اهنګ سره پيل موږ او په پاي کې لوړيږي ٠ پوښتنی کړ پــه بشپړ تيرمهال ٠ نابشپړ تيرمهال ٠ لنډ تيرمهال لرتيرمهال اوتواني تيرمهال کــې راتلای شي ليکښنه ين پای ته يوه پوښتنښه ( ؟ ) ده ٠

١ــ پوښتنــې بشپړ تيرمهال لکه : ما وخوړ ــ تاوخوړ ٠٠٠٠٠٠٠

٢ــ پوښتنی نابشپړ تيرمهال لکه : ما خوړ ــ تاخوړ ٠٠٠٠٠٠٠

٣ــ پوښتنی لنډ تيرمهال لکه : ماخوړلی دي ــ تاخوړلی دي ٠٠٠٠٠

٤ــ پوښتنی لرتيرمهال لکه : ما خوړلی و ــ تاخوړلی و ٠٠٠٠٠٠

٥ــ پوښتنی تواني تيرمهال لکه : ما وخوړ لای شو ــ تا وخوړ لای شو ٠٠٠٠٠

لکه : ماوخوړ لای شو ــ تا وخوړ لای شو ٠٠٠٠٠

يا : ما خوړ لای شو ــ تاخوړ لای شو ٠٠٠٠٠

ب ـ نالیزندکړ ( راتلل ) له بشپړ اند و ( سولتیفو ) دویمو ولیــو راتل ـ ( رات ) ٠ راغل ـ ( راغ ) څخه راغل ـ دبشپړ ( مطلق ) او راتل ـ دنابشپړ ( غیرمطلق ) کړ ولی هم جوړیزي بېل کیـــــزي :

۱ : بشپړ تیرمهال ( مطلقه ماضی ) :

۱ـ خبـــري : چی له راغل ـ یا راغ ـ ریښی څخه جوړ ښت او اوړ و ن مومی ٠

| | یوگړي ( مفرد ) | ډیرگړي ( جمع ) |
|---|---|---|
| ۱ | زه راغلم | موز راغلو |
| ۲ | ته راغلی | تاس راغلئ ٠ ـ راغلاست |
| ۳ | دي راغی ( راغلــئ ) | دوي راغلـــل |
| | دا راغلـــه | راغلی ( راغللـــی ) |

۲ـ لنډ تیرمهال چــی دلیزندکړ غوندي دبیچارکړ نوم له انډول ( راغلی ) څخه دمرستیالکړ ( ي ـ ) او ( د ـ ) په ملگرتیا جوړیزي او گردانیزي ٠

| یوگـــــړي | ډیرگـــــړي |
|---|---|
| زه راغلی ـ راغلی یم | موز راغلی ـ راغلی یـــو |
| ته راغلی راغلی یـی | تاس راغلی راغلی یی ـ یاست |
| دي راغلی دي | دوي راغلی دي |
| دا راغلی ده | دوي راغلی دي |

٣ـ لرتیرمهال ( بعید ماضی ) ، چې له لنډ تیرمهال سره په مرستیالکړ کې توپیر موږ هغه داچې دلته د ( ول ) ولی ( و ــ ) په کار لویږي ۰

| یوګــړي | ډیرګـــړي |
| --- | --- |
| زه راغلی ــ راغلی وم ۰ | موږ راغلی ــ راغلی وو ۰ |
| ته راغلی ــ راغلی وې ۰ | تاسې راغلی ــ راغلي وې ۰ ــ وامت ۰ |
| دی راغلـــــی و ۰<br>دا راغلی ــ راغلی وه ۰ | دوي راغلـــــــي وو ۰<br>دوي راغلی ــ راغلی وي ۰ |

٤ــ ناښپړ تیرمهال ( همیشنی یا استمراري ماضی ) چې د راغلی ــ له بشپړاندې ملګري ولي ( راتل ــ ) یا ( رات ) څخه جوړ بنت او اوړون دوه، په دې توګه چې وګړیزي پایلی په هدغی ولی پورې پیده پنلی :

| یوګـــړي | ډیرګـــړي |
| --- | --- |
| زه راتلم ۰ | موږ راتلــــو ۰ |
| ته راتلې | تاسې راتلی ۰ ــ راتلاست ۰ |
| دی راته ــ راتلو ــ راتلی ۰ | دوي راتلـل ۰ |
| دا راتلــــه | دوي راتلی ــ راتللی |

٥ــ روزندنی تیرمهال ( اعتیادي ماضی ) چې له ناښپړ تیرمهال څخه د ( به ) وییکی زیات لوي لکه . زه به راتلم ــ ته به راتلی ۰۰۰۰۰۰۰۰

٦ــ ارماني تیرمهال ( تمنایی ماضی ) چې په بشپړ ــ ناښپړ او لر تیرمهال پورې اړه لري او د مرخی او جاج ( مفهوم ) له مخی زیاتره په اوس مهال پورې اړه نیسی ۰ بشپړ یې له ناښپړ سره د بشپړ تیا ( مطلقیت ) ــ توپیریزي بشپړ یې لکه ( راغلی لای ) یا ( راغلی وای )

اُونابشپړ ين لکه ( راتللاي ) ، لنبي داركړ نوم دغبرګغز د اوزد ولو پرځاي دمرستيالكړ ( ول ) هغه پراُوزد ه غبرګغز اړ ري . دپوره څرګند تيا لپاره د د رووارو ډولو په سر كي د ( كاشكي ) ويېكي ديوه نحوي توك په توګه هم راوړل کيداي شي .

(١) بشپړ ارماني :

| | يوګـــړي | ډيرګـــړي |
|---|---|---|
| ١ | كاشكي زه راغللاي ـــ راغلاي | كاشكي موز راغللاي ـــ راغلاي |
| ٢ | كاشكي ته رر رر | كاشكي تاس رر رر |
| ٣ | كاشكي دي ـــ دا رر رر | كاشكي دوي رر رر |

( ٢ ) نابشپړ ارماني :

| | يوګـــړي | ډيرګـــړي |
|---|---|---|
| ١ | كاشكي زه راتللاي ـــ راتلاي | كاشكي موز راتللاي ـــ راتلاي |
| ٢ | كاشكي ته رر رر | كاشكي تاس رر رر |
| ٣ | كاشكي دي ـــ دا رر رر | كاشكي دوي رر رر |

( ٣ ) لرارماني :

| | يوګـــړي | ډيرګـــړي |
|---|---|---|
| ١ | كاشكي زه راغلى ـــ راغلى واي | كاشكي موز راغلى ـــ راغلى واي |
| ٢ | كاشكي ته رر رر رر | كاشكي تاس رر رر |
| ٣ | كاشكي دي ـــ دا رر رر | دوي رر رر رر |

۷ــ توانی تیرمهال (امکانی ماضی) چی په (تلل) غوندې نالیږند. کړ کې په ساده ډول پرانخی نابشپړ تیرمهال را اخلی او هغه هم په دې ډول جوړیږي چې د بیچارکړ نوم اند ډول (تللی) پای غورځنګ او زیږی او مرستیالکړ (شول) ورسره اوړونوي.

| یوګــړي | | ډیرګــړي |
|---|---|---|
| ۱ | زه راتللای — راتللای شوم | موږ راتللاي — راتلاي شو |
| ۲ | ته ,, ,, ,, شوې | تاسې ,, ,, ,, شوئ — شوا ست |
| ۳ | دي ,, ,, شو | دوي ,, ,, ,, شول |
| | دا ,, ,, شوه | دوي ,, ,, شولی — شوې |

۸ــ ګومانی تیرمهال (شکیه یا احتمالی ماضی) چی بشپړ ــ نابشپړ ــ انډ او لــر تیرمهال یې په دغو اندې ډولز جوړیږي.

(۱) بشپړ ګومانی چې د (لکه چې) په ماتیا د خبري هغه غونډي جوړیږي لکــــه چې

| یوګــړي | ډیرګــړي |
|---|---|
| لکه چې زه راغلم ! | لکه چې موږ راغلو ! |
| لکه چې ته راغلی ! | لکه چې تاسې راغلی — راغلاست ! |
| لکه چې دی راغی ! | لکه چې دوي راغلل ! |
| لکه چې دا راغله ! | لکه چې دوي راغالی — راغلی ! |

(۲) نابشپړ ګومانی چې له خبري نابشپړ تیرمهال څخه د (ګړند) نه (بنایی) یا (لکه چې) په ماتیا جوړیږي او د روزدنی لپاره یې (په) هم ملګري کیږي.

| ډیرګـــړي | یوګـــړي |
|---|---|
| ګوندي ــ ښایي یالکه چي موږ راتلو | ګوندي ــ ښایي یالکه چي زه راتلم |
| رر رر رر تاس راتلی ـ راتلاست | رر رر رر رر ته راتلی |
| رر رر رر دوي راتلل ــ راتله | رر رر رر دي راتلو ــ راته |
| رر رر رر رر راتللی ــ راتلی | رر رر رر دا راتلله ــ راتله |

وزدني اکه : زه ګوندي ــ ښایي یالکه چي زه به راتلم ــ ته به راتلی .......

(٣) لنډ ګومانـــي د بشپړ ګوماني غونډي په (لکه چي) یا (به) له خبري هغه سره توپیږ ـــــزي .

| ډیرګړي | یوګـــړي |
|---|---|
| لکه چي موږ راغلی ــ راغلی یو | لکه چي زه راغلی ــ راغلی یم |
| رر رر تاس رر رر یي ـ یاست | رر رر ته رر رر رر یي |
| رر رر دوي رر رر وي | رر رر دي ــ دا رر رر وي |

یا ــ زه به راغلی یم ......

(٤) لـــرګوماني چي له خبري هغه سره د (ګوندي) ــ (ښایي) (لکه چي) یا (به) په سرباري کولو توپیږيږي لکه ګوندي زه راغلی وم ــ زه به راغلی وم .

٩ــ ټینګاري تیرمهال (تاکیدي ماضي) . چي بشپړ ــ نابشپړ اولر راتلاي شي او د موخي او جاج له پلوه زیاتره په اوسمهال پوري اړه لري . او د پوره خرګندتیا لپاره یي په سرکي (بویه) یا (باید) هم ملګري کیږي .

(١) بشپړ ټینګاري د به یاباید په مختاړي کولو او د (اي) په روستاړي کولو له (راغلل ــ) یا (راغل ــ) څخه جوړیږي لکه زه به راغللاي ــ راغلاي یا زه باید راغللاي ــ راغـــــلاي .

(٢) نابشپړ تېنگاري چې د به یاباید په مختاري کولو او (اي) په روستاري کولوله (راتلل —) یا (راتلل) څخه جوړیږي لکه :

زه به راتللاي — راتلاي یا زه باید راتللاي — راتلاي ۰۰۰۰۰۰ او یاراتلم به — راتلل په اوداسې نور ۰

(٣) لـر تېنگاري چې له خبري تیرمهال څخه د (به) په سرباري کولو توپیریږي لکه زه به راغلی وم — ته به راغلی وې ۰۰۰۰۰۰ که د (به) ځاي (باید یا (بویه) ونیسي نوبیا د (ول) کړ نوم پاي غبرگغږ لکه ارماني هغه غوندې ورسره اوږ دیږي لکه زه باید راغلی واي — ته بویه راغلی واي چې البته په دروواړو وگړوکې یې بیا نرینه او ښځینه سره توپیر یداي شي ۰ دپاي لیکنښه یې بلنښـه (!) راځي ۰

١٠ — پوښتنې تیرمهال (استفهامي ماضي) په دي مانا چې که په هر ډول تیرمهال کې پوښتنه راشي ۰ نو پوښتنې تیرمهال بلل کیږي ۰ بشپړ لکه زه راغلم نابشپړ لکه زه راتلم لنډ لکه زه راغلی یم لر لکه زه راغلی وم اوداسې پسې نور ۰

١١ — هیښـنې تیرمهال (تعجبي ماضي) چې هیښتیا تري ځرگندیږي اوله پوښتنې سره یوا ځي په اهنگ کې توپیر مومي لکه زه راغلم ! ته راغلی ! او هم داسې په نورو تیرمهالونو کې ۰

١٢ — اړوتي تیرمهال (شرطیه ماضي) چې په تیرمهال کې دکوم کړ پیښیدنه یا نه پیښیدنه په یوه اړ (شرط) پوري تړلې وي داکړ نور تریایه پوري دخبري هغه غوندي رغیدنگ لري خو په سرکې یې یو نحوي توك اړوییکي (شرطیه ادات) ـ که ـ راوړل کیږي لکه که زه راغلم ۰ که زه راتللم ۰۰۰۰۰۰

دویم ـ داوسمهال کړ اوړون ( گـردان ) :

اوسمهال کړ داماناچی کړ هماغه مهال یا یوځه وروسته پیښیږي چی یادونه یی کیږي . چاروال یی له لومړي ولی ( ریښی ) څخه جوړیږي اوبیچار یی له تیرمهال یا په بله وینالهدویمی ولی څخه . چی په دواړو بڼو کی وریوري ټاکلی اوړونی (تصریفی) تاړي (وندونه) نښلول کیږي . دغه تاړي داینی (مسندالیه) اودهغه د گڼی څرگندونه کوي نه دنوزي او مهال . داماناچی په ناتیرمهال کی نوزي نه توپیریږي او مهال خوزیاتره پخپلی کړ ولی سره څرگندیدنه مومی .

الف ـ له لیږند خوړ ـ څخـــــه :

١ : بشپړ اوسمهال .

١ ـ خبري : چاروال . چی له لومړۍ ریښی څخه زیاتره دبشپړتیا یی (مطلقیت ) ( و ـ ) په مختاړي کولو او داړوندو نښلونو په زیاتو لو لاسته راځی :

| یوگړي ( مفرد ) | ډیرگړي ( جمع ) |
|---|---|
| وخورم | وخورو |
| وخوري | وخوري٭ |
| وخوري | وخوري |

بیچار . چی له دویمی ولی څخه دلاسته راغلی بیچار کړ نوم په لنډون اوله هغه سره دمرستیالکړ ( شول ) په اوړون جوړښت مومی :

| یو گـړي | ډیر گړي |
|---|---|
| وخوړل شم | وخوړل شو |
| وخوړل شی | وخوړل شی٭ |
| وخوړل شی | وخوړل شی |

منځوال لګه ؛ ځان وخورم ۰۰۰۰۰۰۰

۲ـ آرزوئي بشپړ او سمهال ( شرطي حال ) چې له خبري بشپړ او سمهال سره توپير
بې يواځې دا دی چې يا شرطيه ادات (که) په سرياري کولو ځرګنديږي ۰

چاروال لګه ؛ که وخورم ـــ که وخوري ۰۰۰۰

بېچار لګه ؛ که وخوړل شم ــ که وخوړل شي ۰۰۰۰

منځوال لګه ؛ که ځان وخورم ــ که ځان وخوري ۰۰۰۰۰

۳ـ ارماني بشپړ او سمهال چې د ( کاشکې ) په ځکی کولو سره د خبري هغه غونډي
رغېدنـــــګ معين ؛

چاروال لګه ؛ کاشکې وخورم ــ کاشکې وخوري ۰۰۰۰۰

بېچار لګه ؛ کاشکې وخوړل شم ــ کاشکې وخوړل شي ۰۰۰۰

منځوال لګه ؛ کاشکې ځان وخورم ــ کاشکې ځان وخوري ۰

۴ـ پوښتني بشپړ او سمهال چې په رغېدنګ کې له خبري څخه يواځې د خج په پياوړتيا
او د اهنګ په لوړتيا کې توپير لري ۰ ليکښــه يې پوښتنښه ده ؛

چاروال لګه ؛ وخورم وخوري

بېچار لګــه ؛ وخوړل شم وخوړل شي ۰

منځوال لګه ؛ ځان وخورم ځان وخوري

۵ـ هيښنې بشپړ او سمهال له پوښتنې هغه څخه يواځې په اهنګ او د غزېدونکي
په اکر ( وضع ) بېلون موندلای شي او ليکښنه يې د پوښتنې پرځای بلښنه راځي ؛

چاروال لګه ؛ وخورم ! وخوري !

بېچار لګــه ؛ وخوړل شم ! وخوړل شي !

٦ـ توانی بشپړ اوسمهال ۰ چی له دویمی ولی څخه دلاسته راغلی بیچار کړ نوم دپای غبرګغږ په اوږدو لواو ورسره د (شول) په اوړونو لو (ګردانولو) سره منځ ته راځی دچولی له مخی له بشپړ تیرمهال سره کوم توپیر نلري ، په زره پوري داچی یی چاروال اوبیچار سره یواځی دغږیدونکی داکسر (وضعیت) ۰ چا پیریال او دریځ (موقعیت) اونومځرو له له مخی توپیرداي شی لکه : زه غم وخوړ ناري شم ــ ماغم وخوړ لاي شی یاغم ماوخوړ لاي‌شی ۰۰۰

| ګڼه / وګړي | یوګړي | ډیرګړي |
|---|---|---|
| ۱ | وخوړ ناي شــــم | وخوړ لاي شـــــــو |
| ۲ | وخوړ لاي شی | وخوړ لاي شـــــــئ |
| ۳ | وخوړ لاي شــــی | وخوړ لاي شـــــــی |

٧ـ امري بشپړ اوسمهال چی یواځی د دویم وګړي لپاره راځی چاروال یی له لومړي ولی څخه ساده ډول او بیچار یی له دویمی ولی څخه دلاسته راغلی بیچار کړ نوم په لنډو ن او دمرستیالکړ (شول) په اوړون سره تر سره کیږي ۰

چاروال لکه : وخوره ! وخوري ٔ !

بیچار لکه : وخوړل شه ! وخوړل شئ ٔ !

٨ـ ټینګاري یا تاکیدي بشپړ اوسمهال چی له خبري‌هغه سره یی توپیر یواځــــی دټینګاروییـــکی یا تاکیدیادات (دي) په ورزیاتولو ترسره کیږي ۰

چاروال :له نومځرو سره لکه : زه دي وخورم ! ته دي وخوري ۰۰۰۰

بی نومځرو لکه : ودي خورم ! ودي خوري ۰۰۰۰

بیچــــار : له نومځرو سره لکه : زه دي وخوړل شم ! ته دي‌وخوړل شی !

بی‌نومځرو لکه : ودي خوړل شم ! ودي‌خوړل شــی !

٩- غوښتنی بشپړ اوسمهال چې دعایا ښیرا څرګندوي او یوازی په ناتیرمهال کی راتلای شی . د ټینګاري هغه او کله کله د امري هغه غوندي جوړیزي خو پوره څرګند تیا یې په یوه غونډ له (جمله) کی له نورو توکونو سره کیدای شی لکه :

سردې وخورې یا سرمې دې وخورې – سردې وخوره یا په دغو مثلو کی : نه اشه ښه ده نه ګله – دوې دې وخوري یو تربله (میدان) .

نه یوه ښه ده نه بله – دوې دې وخوري یو تربله (د هلمند ناوه)

په پښتو کی زیاتره ارکړ ونه په ساده او یو ستوي توګه دغوښتنی لپاره راتلای نشی او مرستیالکړونه او توکونه ور سره ملګري کیږي .

ساده لکه : ومره ! ژوه ! (زنده باد) .

ترښتی (ترکیبی) لکه : ستړي مه شی ! خوارمه شی ! هرکله راشی ! خیر یوسی !

یا له (خدای) سره : خدای دې خوار مکړه ! خدای دې وبښه – خدای دې ښه درسره وکړي ...

١٠- ګومانی بشپړ او سمهال چې دا رنګ وبیکو (شکیه اداتو) او غونډ له ییزو توکونو په مختاړ لي کولو له خبري هغه څخه جوړیزي .

چاروال لکه : ښایی چې وخورم – ګوندي وخورم – لکه چې وخورم – کیزي چې وخورم

بیچار لکه : ښایی چې وخوړ ل شم – ګوندي وخوړ ل شم – لکه چې وخوړ ل شم –

کیزي چې وخوړ ل شم ! .

٢ : نابشپړ اوسمهال (غیرمطلق یا استمراري چال)

١- خبـــري :

چاروال . چې بی له کوم مختاړي له لومړ ی کړولی سره د وګړ یزو پایلو (خاتمو) په ملتیا جوړیزي لکه :

| گڼه / وگړي | يوگړي ( مفرد ) | ډيرگړي ( جمع ) |
|---|---|---|
| ١ | خورم | خورو |
| ٢ | خوري | خوري |
| ٣ | خوري | خوري |

بيچار ۰ چې له لنډه کړ شوي بيچارکړ نوم(خوړل) سره مرستيالکړ (کيدل) په اوسمهال کی اوړون موږ لکه :

| گڼه / وگړي | يوگړي | ډيرگړي |
|---|---|---|
| ١ | خوړل کيږم | خوړل کيږو |
| ٢ | خوړل کيږي | خوړل کيږي |
| ٣ | خوړل کيږي | خوړل کيږي |

منځوال لکه : ځان خورم ۰۰۰۰۰

٢ــ اړوتی نابشپړ اوسمهال چی داړوييکی ياشرطيه ادات(که ) په مختاړي کولو له خبري هغه ځخه جوړيږي :

چاروال لکه : که خورم ــ که خوري ۰۰۰۰۰

بيچار لکــه : که خوړل کيږم ــ که خوړل کيږي ۰۰۰۰

منځوال لکه : که ځان خورم ــ که ځان خوري ۰۰۰۰۰

٣ــ ارمانی نابشپړ اوسمهال چی دجولی له مخی له ارمانی نابشپړ تيرمهال سره کوم توپيرنلري لکه کاشکی ما خوړلی شواي ۰په دي توگه يی له نورو ارمانی (تيرمهال يااوسمهال) ډولونو سره د چاروال او بيچار توپير د دريځ او نومځرو له مخی کيداي شی ۰

٤ــ پوښتنی نابشپړ اوسمهال له بشپړ تيا يی يا مطلقه (و ــ ) پرته نور د پوښتنی بشپړ اوسمهال غوندي رغيدنګ لري لکه خورم ۰

٥ــ هينبنى بياله پونبتنى سره يوالحى په اهنگ اوچاپيريال سره توپيرپداي شــ اوپه ليك كي په پلنبنبــه لكه : خورم !

٦ــ گومانى نابشپړ اوسمهال له بشپړ تيايى ( و ــ ) پرته نور د بشپړ هغه غوندي رغيزي لكه گوندي خورم يا گوندي خپل سرخورم .....

٧ــ توانى نابشپړ اوسمهال دجولى لهمخى له توانى نابشپړ تيرمهال سره كوم توپيرنلري اوپرالحى دجاج اوموخى ( مفهوم او مقصد ) له مخى تري توپيرداي شى اوهماغسىبى دچاروال اوبيچار بيلتون دنومځرو په اوښتون سره راځي لكه ما خوړلى شواي ــ زه خوړلى شواي ...

٨ــ امري نابشپړ اوسمهال چى كټمټ دبشپړ هغه غوندي يوالحى د دويم وګړي لپاره راځي لكه خوره ! خوري !

٩ــ تينګاري يا تاكيدي نابشپړ اوسمهال چى د ( دي ) په ملتيا په دي وروستــــه بول جوړيدنګ موس ...

چاروال . له نومځرو سره لكه زه دي خورم ــ ته دي خوري .

بى نومځرو لكه : خوړل كيږم دي ــ خوړل كيږي دي ! (١)

١٠ــ غوښتنى نابشپړ اوسمهال چى بيرلز دودلري او هغه هم په تخينو كرو او بياپه يوه غونډه له ( جمله ) كى له نورو توكونو سره لكه :

خداي دي ليره ــ خداي دي له هري بلا ساتــــه !

خداي دي مه بنه ــ خداي دي مه خواروه !

خداي دي مه كموه ! اودانسى پسى نور .

( ١ ) بيچار ــ له نومځرو سره لكه زه دي خوړل كيږم ــ ته دي خوړل كيږي

بى نومځرو لكـــه خوړل كيږم دي ــ خوړل كيږي دي .

ب ــ له نالیزند خ ــ ــ ولاړ ــ او تلل یا تل ــ څخه :

١ : بشپړ اوسمهال • چې له دویمې ولی ( ولاړ ــ ) سره مرستیالکړ ( شول ) اوړون مومی •

١ــ خبري :

| ګڼه / وګړي | یوګړي ( مفرد ) | ۲ یرګړي ( جمع ) |
|---|---|---|
| ١ | ولاړ شـــم | ولاړ شـــو |
| ٢ | ولاړ شـــې | ولاړ شـــې |
| ٣ | ولاړ شـــي<br>ولاړه شـــي | ولاړ شـــي<br>ولاړي شـــي |

٢ــ اړوتی بشپړ اوسمهال • چې د اړوییکی یا شرطیه ادات ( که ) په مختاړي کولو دخبري هغه غوندي رغیدنه مومی لکه : که ولاړ شم ــ که ولاړ شی ......

٣ــ ارمانی بشپړ اوسمهال چې د تولو وګړو لپاره له ( ولاړ ــ ) څخه د جوړ شوي کړ نوم ( ولاړ لی ) په اوزدو لو جوړیزي اود پوره څرګند تیا لپاره یی د ( کاشکی ) وییکی هم په سرکی راځی او د جولی له مخی له ارمانی بشپړ تیرمهال سره کوم توپیر نلري لکه : کاشکی زه ولاړ لاي یا ولاړ اي ــ کاشکی ته ولاړ لاي ــ ولاړ اي ......

٤ــ پوښتنی بشپړ اوسمهال چې له خبري هغه سره یواځی په اهنګ کی توپیرلري لکه : ولاړ شم ولاړ شی •

٥ــ هیښنی • چې له خبري یا په بله وینا له پوښتنی هغه سره دغږیدونکی په یوه ځانګړي اکر ( وضعیت ) او اهنګ کی توپیرمومی لکه :

ولاړ شم ! ولاړ شی !

٦ــ توانی بشپړ اوسمهال چې له ( ولاړ ) سره د مرستیالکړ ( شول ) اوز دغبرګغږي کړ نوم ( شولاي یا شواي ) اوړون مومی اوبه دي توګه د جولی له مخی له توانی بشپړ تیرمهال سره سمون خوري •

| وګړي / ګڼه | یوګـــړي | ډېرګـــړي |
|---|---|---|
| ۱ | ولاړ شولاي ــ شواي | ولاړ شولاي ــ شواي |
| ۲ | رر رر رر | رر رر رر |
| ۳ــ | رر رر رر<br>ولاړه رر رر | رر رر رر<br>ولاړي رر رر |

۷ــ امري بشپړ اوسمهال چې یواځې په دویم وګړي پورې اړه لري لکه:

ولاړ شه! ولاړ شئ!

۸ــ ټینګاري بشپړ اوسمهال چې له خبري هغه سره یې توپیر یواځې د ټینګار وییکی (دې) په ورزیاتولو کیږي.

له نومځرو سره لکه: زه دې ولاړ شم ــ ته دې ولاړ شې ....

بې نومځرو لــــکه: ولاړ دې شم ــ ولاړ دې شې ......

۹ــ غوښتنــې بشپړ اوسمهال چې له ولاړ ــ څخه په سیده ډول ډېر لږ دود لري

لکـــه: سردې ولاړ شه! ګورته ولاړ شې!

۱۰ــ ګومانې یا احتمالي بشپړ اوسمهال چې له ولاړ سره مرستیالکړ (شول) د اړنګ وییکو (شکیه اداتو) یا په بله وینا د اړنګ توکونو په ملتیا اوړون مومي لکه:

ښایي چې ولاړ شم ــ ګوندې ولاړ شم ــ لکه چې ولاړ شم ــ کیږي چې ولاړ شم ....

۲: نابشپړ اوسمهال چې یواځې د ارمان او توانې لپاره تل ــ یا تلل ــ راځي ځکه چې د جولې له مخې له تیرمهال سره سمون لري او نور پاتې ډولونه یې [illegible] له ولې څخه جوړیږي چې

د تل ــ یا تلل ــ او ولاړ ــ سوپلاتیف (بشپړاند) بلل کیږي [illegible]

١ـ خبــري :

| وګړي / ګڼه | يوګـــړي | ډيرګـــړي |
|---|---|---|
| ١ | ځم | ځو |
| ٢ | ځـې | ځئ |
| ٣ | ځـي | ځي |

٢ ـ اړوتی لکه : که ځم ـ که ځي ......

٣ـ پوښتنی لکه : ځم ځي

٤ـ هیښنی لکه : ځم ! ځي !

٥ـ امري لکه : ځه ! ځئ !

٦ـ تینګاري لکه : ځم دي ځي دي (له دویم وګړي پرته) .

٧ـ ګومانی چی د (ګوندي) او (لکه چی) په ملګرتیا دخبريځغه غوندي جوړیږي

لکه : ګوندي ځم ـ لکه چی ځم

٨ـ غوښتنی یی د ود نلري .

٩ـ ارمانی چی د تل یا په بله وینا تلل ـ د چارنوم (تللی) په اوزد ولو سره جوړیږي

لکه : زه تللای ـ ته تللای ......

١٠ـ توانی چی د تل یا تلل ـ له چارنوم تلی یا تللی سره د مرستیالکړ (شول)

داوزده چارنوم (شولای یا شوای) په ملتیا جوړ ښت موس اود تولو وګړو لپاره په همدي یوه بڼه

راځي لکه : زه تللی شوای ـ ته تللی شوای ......

دريم ــ د اوسترمهال کړ اوړون (گردان):

اوسترمهال یا مستقبل کړ چې پهگانده (اینده)کې دیوه چارپیښیدل څرگندوي • دجولی اومانا لهمخې له اوسمهال سره کوم ستر توپیر نلري دا دواړه مهالونهپه یوه نامه ناتیرمهال هم نومول کیداي شي لکه څنگه چې دوکتور تـزي دغه نومونه کاروي • خو بیاییهم د (به) ویکی پهزیاتولولـــه اوسمهال سره بیلتون راتلاي شي اوپه دې توگهپه پرتلیزهول د غزیدونکی دغزیدا لهمهال نهیوخه وروسته مهال نبیـس •

الف ــ لهلیزند خور ــ اوخوړ ــ څخه:

بشپړلکه: ویه خورم ــ ویه خوري

یاــ ویه خوړل شم ــ ویه خوړل شي

نابشپړلکه: خورم بهــ خوري به

یا: خوړل کیږم بهــ خوړل کیږي به • • • • •

ب ــ لهنالیزند ځ ــ اوولاړ ــ څخه:

بشپړلکه: ولاړ بهشم ــ ولاړ به شي •

نابشپړلکه: ځم به ــ ځي به • • • • •

## دکړ رغاونی ( ساختمانــــــس ) پهولونـــــه

دکړ تر بیلا بیلو ګرامري پهولونو او اوړونو ( ګردانو ) وروسته غواړو دوی رغاونی ( لغوي ساختمان ) له مخی د هغه رغاونه او جوړښت ترکتني لاندې ونیسو ۰ په دی توګـــه له څلورو پهولو کړونو سره مخامخیزو : ساده ــ بیلښتی ( اشتقاقی ) ــ شاپشاڅــ یاڅواپرخوا ترښتی ( ترکیبی )۰

۱ــ ساده یا یو ستوي‌کړ چی ستــه یا بنسټ یی له یو ګړیزي ( یومورفیمیزي ) ولی څخه جوړوي ۰ او اوړونی ( تصریفی ) مختاړي او روستاړي وریوري سیده نښلول کیږي لکه خور ــ چی خورم ــ خورو ــ خورې ــ خوري ۰ ــ خوري ۰۰۰۰ اوداسی نورې جوړونی تري‌کیږي ۰

۲ــ بیلښتی یا اشتقاقی کړ ۰ چی ستـه یابنسـټ‌یی له یو ګړیزي‌ولی اوکوم تاړي ( افیـکس ) څخه جوړوي ۰ په دې مانا چی دکړولی جاج ( مفهوم ) دیوه تاړي په ملتیا بشپړیږي او څرګندیږي ۰ یاپه بله وینا دغس یوتاړي دجاج اومانا له مخی دکړ ولی نه بیلیدونکی توک ګڼل کیږي ۰ په دي توګه که له ولی څخه لرې کړو تاکلی جاج یی اوړي اوبایی کوږ‌ټ له لاسه ورکوي لکه : راغلل ــ درغلل ــ ورغلل ــ راتلل ــ درتلل ــ ورتلل ــ راکول ــ درکول ــ ورکول ــ کښیوتل ــ کښیناستل ۰ کښی ایستل ۰ کښینول ــ پوريوتل ــ پوري‌وهل ــ پوري ایستـل ــ پوري کول ۰۰۰ دغه راز پهیر ستاینوم‌نه او څیز نوم‌ونه هم د روستاړو په نښلونه داوسمهال کړ ولی ګرځی لکه : لوییدل ــ غټیدل ــ تیریدل ــ کاریدل ــ اوبیدل ــ دودیدل ــ لاسیدل ۰۰۰ یالویرل ــ غټول ــ تیرول ــ کارول ــ اوبول ــ دودول ــ لاسول ۰۰۰۰۰

دبیلښتی یا اشتقاقی‌او یا مشتق کړ رغاونه داسی لنډه ون مومی :

۱ــ کړولی + مختاړي = راتلل ۰ درتلل ۰ ورتلل ۰۰۰

۲ــ ستاینوم ولی + روستاړي = لوییدل ــ لویول یا غټیدل ــ غټول ۰۰۰

۳ــ څیز نوم ولی + روستاړي = اوبیدل ــ اوبول ــ یا دودیدل ــ دودول ۰۰۰

زموږ دودیزژبپوهان دغی پهلی کړونوته (( یدل والا مصدرونه )) وایی چی یوه ناپوهنیزه نومونه ده ۰

۳ــ خواپرخوایا سست ترښتی ( ترکیبی ) کړ ، هغه راز کړته وایې چې دَ کړ ستېس یاښست له دوویا ډیرو خپلواکو ګړونو ( مورفیمونو ) څخه هسې سرسري او بې ابزیو ځایوالی موندلی وي ، په بله وینا یو پوخ ترنګ ( ترکیب ) یې بللای نشو ، داسې چې سره یوځای شوي توکونه نه خپله لاسه ورکوي اونه پایلې اوړه دي تورګه یې پایلې سره جلا جلا خپله اوړ ونې ( تصریفی ) لوښنه ( خاصه ) ترسره کوي حال دا چې په یوه پوخ یارښتینې ترنګ کې د رغندړه توکونو ( اجزاوو ) خپلونه او ( تصریفی ) پایلې پروروستې توک باندې پندېدنه اوبوکیدنه ( تجمع او توحید ) مومې ، دخواپرخوا کړ رغاونه په دي لاندې ګړنو ( اصطلاحاتو ) کې ښوول کېږي :

۱) څیزنوم + مرستیالکړ = زمری کیدل ــ کول ، زمری کیدل ــ کول ــ زمري کیدل ــ کول ، زمری یازمریانې کیدل ــ کول .....

۲) ستاینوم + مرستیالکړ = مړ کیدل ــ کول ، مړه کیدل ــ کول ، مړه کیدل ــ کول ، مړي کیدل ــ کول ...

۳) چاروال کړ نوم + مرستیالکړ = سرخوړ ونکی کیدل ــ کول ، سرخوړ ونکې کیدل ــ کول ، سرخوړ ونکي کیدل ــ کول ، سرخوړ ونکې کیدل ــ کول .....

٤) بیچارکړ نوم + مرستیالکړ = سرخوړلی کیدل ــ کول ، سرخوړلې کیدل ــ کول ، سرخوړلي کیدل ــ کول ــ سرخوړلې کیدل ــ کول ....

۵) شمیرنوم + مرستیالکړ = دوه کیدل ــ کول ، دوي کیدل ــ کول ....

٦) بیا ځلی ستاینوم + مرستیالکړ = تود تود کیدل ــ کول ، توده توده کیدل ــ کول ، تاوده تاوده کیدل ــ کول ، تودې تودې کیدل ــ کول ....

۷) سربل + څیزنوم + مرستیالکړ = ترلاسه کیدل ــ کول ....

۸) سربل + څیزنوم + اوستربل + اړکړ = له سرنه تیرول ــ له پښو څخه غورځیدل ــ غورځول ، تریایه پورې رسیدل ــ رسول ....

٩) څیزنوم + او ستربل + مرستیالکړ = مخ ته کیدل – کول ، شاته کیدل – کول ۰۰۰

١٠) څیزنوم + اوستربل + ارکړ = پای‌ته رسیدل – رسول ، سرته ختل – خیژول ۰۰۰۰

١١) څیزنوم + او ستربل + بیلښتی کړ = لاس‌ته راوړل – لاس‌ته راوستل ۰۰۰۰

٤– تړښتی (ترکیبی) کړ ، چی له خواپرخوا کړ سرېی په رغاونه کی توپیر دادي چی دلته مله یا یو ځای شوي‌توکونه سره یو نه جلا کیدونکی یووالی منځ ته راوړي په دي مانا چی‌مخنی توکسونه‌یی خپل خج او اوړونی تاړي اوله دي سره مانیزه او ګرامري‌خپلواکی له لاسه ورکوي او یوانحی وروستنی هغه‌یی دګرد تړنګ په ښکارندوی یو غښتلی خج او اوړونی‌نښی نښانی‌ځان ته اخلی ۰ البته مخنی توکونه‌یی یا له آره ناوړیدونی وي (لکه کړولونه) اویایی په همدغه تړنګ کی خپله اوړونی او ګرامري جوله اوچاروماناله لاسه ورکړي وي ۰ تړښتی کړ هم لکه د (خواپرخوا) کړ غوندي په‌ کړنو (ایدیمونو) اړه لري لکه‌په دي بیلګو کی:

څیزنوم + مرستیالکړ = زړه کیدل (میل درلودل) یا ښکاره کیدل – کول ۰ غلاکیدل – کول (خج پرمرستیالکړ) کښی‌خواپرخوا کړ بدلیږي ۰

څیزنوم + مرستیالکړ = زړه کول (جرئت کول)

څیزنوم + مرستیالکړ = توره کول (غیرت یا میړانه کول) ۰

تړښتی څیزنوم + مرستیالکړ = زړه نازړه کیدل (شکی یا مترددکیدل)

بیاځلی ~~څیزنوم~~ + مرستیالکړ = سترګی سترګی کیدل (انتظار ایستل) برخه برخه – توټه توټه – ونډي ونډي – لوټی لوټی کیدل یا کول ۰۰۰

ستاینوم + مرستیالکړ = لوده – شوده – بدمرغه ۰۰۰ کیدل یا کول ۰

بیاځلی ستاینوم + مرستیالکړ = لوده لوده – شوده شوده ۰۰۰ کیدل یا کول ۰

بیاځلی کړول + مرستیالکړ = پورته پورته – کښته کښته – وروسته‌وروسته ۰۰۰ کیدل یا کول ۰

څیزنوم + ارکړ = پښه نیول – لاس‌اخیستل – سرخوزیدل – ځان پړسول – ځان وهل – ځان وژل – ځان‌ژوبلول او داسی نور منځوال کړونه له اره تړښتی کړونه بریښی ۰

دویمه برخــــه :

ناوړیدونی ګړونه( INDECLINABLE MORPHEMES )

دګړپوهنی (مور فولوژي )په تیره برخه کی موله نومونو او کړونو څخه خبري وکړي او په هغه ترڅ کی مو دهغوی ولونه او اوړونونه (ګردانونه ) وښوول په دي برخه کی غواړو دګړونو (مورفیمونو) یوه بله(دویمه ) ډله ترکتنی لاندي ونیسو . ددي ډلی ځانګړتیا (خاصه) داده چی دتیري ډلی (نومونو او کړونو ) په توپیرځانته کوم ازاده وییزه (لغوی ) مانا نلري بلکی له خپلواکوګړونو (نومونو او کړونو ) سره یی چار او مانا جوتیږي او له کړولونو(قیدونو) پرته دغونډلی (جملی ) له مرستیالو توکونو څخه ګڼل کیږي . کړولونه بیاله نومونو او کړونوسره داروبا ازادوګړونـــو (مور فیمونو.) له ډلی جوړوي .

ناوړیدونی ګړونه په دي وروسته توګه بیلابیلی ټولی (کتګوري )او ډولونه جوړوي :

لومړي ــ کړولونه یاقیدونه ( ADVERBS ):

کړولونه هغه ژبنی توکونه دي چی دیوه کړ دپیښیدنی څرنګوالی ښیی داڅرنګوالی دکړ دپیښیدلوځاي یا مهال ټاکی اوبایی څرګندتیا ټینګار او داسی نوری ځانګړ تیاوي (خصوصیات) ښکاره کوي . په پښتو کی اړکړولونه ناوړیدونی دي . نااړلکه څیزنومونه اوستاینومونه چی په څــرمه ډول دکړولونوپه توګه کارول کیږي البته ناوړیدونی نه بلل کیږي . په ټولیز ډول کړولونه داوروسته ویشنه لري :

۱ــ مهالی کړول : چی دمهال له مخی دیوه کړ پیښیدنه اغیزمنوي لکه :

اوس ــ وروستهــ خکی ــ دمخه ــ پخوا ــ وړاندي ــ سمدلاسه ــ سملاسی په سرکی ــ په پیل کی ــ په پاي کی ــ پاي ته ــ بیرته ــ سرته ــ ژر ــ ورو ــ ګړندي ــ ځنډ یا په ځنډ ــ بی ځنډه ــ په بیړه ــ په تلوار ــ په چټکی ــ په چابکی ــ ووړمه ورځ ــ ووړمه شپه ــ پرون ــ پرون ورځ ــ پرون شپه ــ نن ــ نن ورځ ــ نن شپه ــ نن ګهیځ ــ نن غرمه ــ نن مابنام ... ــ سبا ــ سباته ــ بل سبا ــ بل سباته ــ ګهیځ ــ سهار ــ غرمه ــ ماسپښین ــ مازیګر .

(مازیګرچیرټوي لوي مه شــــــــی مابه ندګی کی شنه بادرنګ راوړي وونه) .

دوخته ــ ناوخته ــ لمرخاته ــ لمرپریواته ــ سز کال ــ پروسز کار ــ وورم کال ــ لاوورم کال (ته ) ــ کال ته ــ بل کال ته ــ لابل کال ته ــ ترخو یاخرــ په مخامخ ــ په ښه ــ په شا ــ دمخه ــ د وراندې مخه ــ وروسته ...

لـه مخې ــ دولا ي لـه مخې

اوداسې نور او او دنا او کړولونه ! بیا مختلف (تکراري) لکه : ژر ژر ــ اوس اوس ...

لنډ پرلنډ یا لنډ پرلنډه ــ لاس پرلاس ...

۲ــ ځای (مکانی ) کړول : چې دیوه کړ پیښیدنه د ځای او چاپیریال له مخې اغیزمنه کوي لکـــــه :

دلته ــ هلته ــ دلی ــ هلی ــ دورې ــ هورې ــ مخکی ــ وروسته ــ شاته ــ مخ ته ــ بیرته وړاندې ــ لرې ــ نژدې ... (دغه راز کړولونه زیاتره مهالی اوتونی دواړه کاره ورکوي په بله وینا هم مهالی او هم تونی دي ) ــ کښته ــ پورته ــ لاندې ــ باندې ــ دننه ــ دباندې ــ اخوا ــ دیخوا ــ له لرې ــ له نژدې ــ له ورایا له ورایه ــ مخامخ ــ پشی شا ــ مخپورته ــ مخکښته ــ مخ پر وړاندې ــ پرمخ ــ پرشا ــ ستونی ستغ یا ستونی ستاخ ــ سرپرځېـس ... ځای پرځای ــ لور دلوره ــ لورا لور ــ کوراکور ...... اوداسې نور او او دنا اریا ساده او ترښتی تونی کړولونه !

۳ــ څرګندنی او ټینګاري کړولونه : چې دیوه کړ دپیښیدنې څرګند تیا ! حالت څرنګتیا یا ټینګار ښیی لکه : په ځغرده ــ په ډاګ یا په ډاګه ــ ډانګ پیـــلی (ویل ) ــ په ښکاره ــ په پټه ــ په څرګنده ــ په غلا ــ په زیارــ په خواري ــ په میړانه ــ په ویره خوله ــ په زور یا په زوره ــ په خوښه ــ ورو یا په ورو (اواز ) ــ په نره ــ په مړو سترګو ــ په ټیټو سترګو ــ په بڅوسترګو ــ په هسکه غاړه ــ په کلکه ــ په ټینګه ــ زړه نازړه (کول ــ ویل ...) ــ په ناسته ــ په ولاړه ــ په منډه ــ په ملاسته ــ هرومرو ــ زاړو ــ په هرډول ــ په هره توګه ــ هیڅ په هیڅ یا هیڅ په هیڅه ــ خوشی په خوشی ــ په اوزدو ــ په لنډو یا په ساره ځه ناځه ــ زړه نازړه ــ لز و ډیر ...

یاد اوزدو کړنو په بنهه لکه : وانبه پرخوله رسی پرغاړه (ورتلل ) ......

دویم ــ ویبکی (ادوات PARTICLES ) :

داهم دناوړیدونیو یا ازاد و ګړونو (مورفیمونو) یوه غوره برخه ده او بیلګی یی په دي وروسته ډول دي :

۱ــ اړیکوییکی (ارتباطی ادات CONJUNCTIONS ) : چی څومره والی او څرنګوالی یاورته والی له مخی سره اړي او څرمه غونډلی (جملی) نښلوي اوپه دي توګه دوه دوه سره غاړه کیږي چی له لومړي سره یی زیاتره (چی) هم ملګري کیږي که څه هم (چی) پخپله ځانته یو اړیکوییکی هم دي ٠ او په ګډه ددوو توتو یا غونډ لو اړیکی ټینګوي لکه څومره او هومره دي غبرګه غونډ له کی ٠ څومره دیګ هومره تیپر ٠ نوري داسی جوړي لکه ؛ څنګه چی ــ هسی ٠ که څه هم ــ بیا هم ٠ څومره چی ــ هومره یاهماغومره ٠ چیري ــ هلته (چیري دي بنه هلته دي شپه) هسی ــ داسی ــ همداسی ــ همدارنګه ــ همداراز ــ هغسی ــ هماغسی یاهمغسی ــ څو ــ مګر همدومره ــ په همدي ډول ــ په همدي راز ٠ چی ــ نو ٠٠٠٠ په کندهاري ګړدود کــس ځکه هم د څنګه پازه پرځای کوي لکه چی وایـی ځکه چی ناروغ وم نو درمل می وخوړل ٠ (که) بیاپه اړ ویبکو کی یو اړ وییکی دي چی د دوو غونډ لو ترمنځ یواړ (شرط) ټینګوي لکه که ته راشی نوزه به هم راشم ٠

۲ــ ورتــس یا تشبیهی وییکی چی په دودیز ګرامر او ادبی فنونو کی یی (حروف تشبیه) بولی هغه وییکی دي چی ددوو یا زیاتو څیزونو یاپدیدو ورته والی او مشابهت ښیی لکه :

لکه ــ غوندي ــ په څیر ــ په رنګ ــ په شان ــ په دود ــ په توګه ــ په ډول ــ په راز ٠٠٠٠

۳ــ تړوییکی (عطف توري) چی دوه توکونه (وییی) یاغونډ لی سره ملګري کوي لکه او ــ و ــ که ــ یا ــ سره په دي بیلګو کی ؛ باغ وایډ ګلونو پکی ناست وایږه اوته ــ (و) او (او) سره همهانیزدي اوواځی غزیز (فونو لوژیکی) توپیر سره لري همدغه (او) دي چی په زیاته کارید نه پر (و) اوړي لکه موروپلار ــ خور و ورور مګر که له خپلواکپای وی سره بل وی تړل کیږي نو په اره بنـه راځی لکه کاکا او ماما ٠٠٠

بل داچې زیاتره (او) یو نحوي تړون ښیی او(و) یو لغوي تړون ..... همدارنګه (که) او(یا) هم همغانیز تړوبیکی بلل کیږي لکه ښه که بد ښه یا بد ـ (سره) له نورو تړوبیکوسره داتوپیر لري چې د ملګرو توکونو(ویپو یا غونډ لو) ترمنځ نه بلکې تړېوروسته راځي او هغه سره تړي یاملګري کوي .

٤ـ تولوبیکی (اضافت توري) چې څیزونه یاپدیدې سره یو له بله اړوندوي یا یو دبل تول او ملکیت کوي په جولیز ډول پښتو یواځې یوتولوبیکی (د) لري لکه: دهلك خولې ـ دپښتو ځانګه د اسمان ستوري ...... داچې پښتو ځانګه یا دري ځانګه ـ ادب پوهنځی یا کابل پوهنتون بې (د) ویل کیږي دلیل دادي چې په لومړیو دوو سارېو (مثالو)کې پښتو اودري دنورو ژبنی نومونو غونډې د ستاینومو بڼې غوره کوي او ستاینوم په پښتوکې په خپل څیز نوم پورې سیده نښلی نور ساري یې لکه: افغان اولس ـ باختر اژانس ـ پښتون ځلمی اوداسې نور. او ادب پوهنځی یاکابل پوهنتون دنومونو او تړکونو (ترکیبونو) په توګه د (د) غونډي یونحوي توك ته نوره اړه نلري : نور ساري یې لکه: طب پوهنځی ـ پلان وزارت ـ دفاع وزارت اوداسې نور. (د) دتولو الی ترڅنګه لږ و ډیره مهالی پاره هم ترسره کوي لکه د شپې ـ دورځې ... مګر د سربل په توګه د (د) کارونه دلیکنی معیاري پښتو له بنسټو څخه چپه بریښی لکه د ځلمی سره دکدهار څخه راغلم . همدارازله تشبیهی وییکو(غونډي ـ په څیر ـ په رنګ ...) د یوه (سربل) پتوګه هم غاړه کیږي لکه د زمري غونډي .... له (ـ پاره) سره نن سبا دومره نه مل کیږي بلکې پر (له) اوښتی دي.

٥ـ سربلونه( PREPOSITIONEN ) او اوستربلونه( POSTPOSITIONEN ) :

سربل یا پیشینه هغه وییکی دي چې تریوه نوم د مخه راځی او په یوه غونډ (فقره) یا غونډ له کې دهغه نوم پیر اودریځ ښیی . لکه (په) په (په کورکې) ـ (له) په (له ښوونځي څخه) یا (له ځلمی سره) (تر) په (ترکوره پورې) ـ (په) په (په تاپورې) اوداسې نورو بیلګو کې . په دې توګه موږ ګورو چې یو سربل دیوه بل وییکی په ملګرتیا چې تر نوم څخه وروسته راځی . نوم په تون ـ وتون اوداسې

نورو پیرو کې اچوي دغه ترنامه وروسته ملګري ویيکې يي (اوستربل) يا پسینه بلل کیږي ٠ سره له دي چې سربلونه او اوستربلونه دغونډول (جملې) يا په بله وينا په ناخپلواکو او مرستيالو توکونو کې راځي اوماناً اوپيازه يي د هغو نومونو يا کړنو او کړولونو په ګاونډ يتوب کې څرګنديدا ي شي ٠ خود اچې پردغو اريا خپلواکو توکونو يو ډول اغيز لري او د هغو د ريخونو او پيرونـــــه (حالتونه) څرګندوي نو اد اره کوونکي ـــ چلوونکي يا واکمن توکونه هم بلل کیږي (په نحوي تجزيه کې به پرې پوره خبري وشي) ٠ د دغه پورتنيو پارو اوند و له پلوه سربلونه او اوستربلونه په دي وروستيو ډولو ويشنه مومي ؛

ا ـ په ـ چې اه (کې) اوستربل سره د اړوند (مربوط) نوم تون پير يا ظرفي حالت څرګندوي لکه (په تړلګی کې) ـ له (پوري) اوستربل سره يو بل ډول تون پير يا په بله وينا يوپيو ستون ښيي لکه په ځان پورې ـ په تاپورې ـ ستاپه خبري پوري (بارتباط ګپ شما) ـ له (ســره) او ستربل سره يو لوښتيير (الي حالت) را ښيي لکه په بياتې سره ـ په چړي سره ـ په وينا سره ـ په زور سره ـ په خونې سره ـ له (پسې) او ستربل سره يو بل راز تونپير يا پرله پسې والـــې څرګندوي لکه ؛ په تاپسې ـ په مختې پسې اماني راځي ـ په ژمي پسې پسرلی دي لکه په پورتنيو بيلګو کې چې ليدل کیږي کله کله تري ملګري اوستربل لويداي هم شي لکـــــه ؛ په خونه که په زوروي له مظلوم به د ظالم لاس لنډيږي په تا اړه نلري (په تاپوري اړه نلري) ـ په ليکانې ليک کیږي (په ليکانې سره ليک کیږي) ٠ مګر (په کور) اه (په کورکې) سره يوراز نه دي ـــــــــــــــــــــه (پـــه کـــــــــــــــور) له اره (پرکور) دي چې ظرفي نه بلکې استعلايي مانا ښندي ٠ همدارازپه وخت ـ په کال ـ په مازيګر ـ په بجو ٠٠٠٠٠ د پروخت ـ پرکال ـ پرمازيګر ـ پربجو ٠٠٠٠٠ ناسم يا ناکره ښيي دي ٠ همداخبره ده چې موږ (پمپنتوليکل) او (پرپښتو ليکل) سره توپيروو ٠

٢ ـ پر ـ يو باندېني (استعلايي) وييکې دي چې يو اړوند اوستربل (باند ي) يې زياتره غوړ ځيږي لکه پرميز باندي يا پرميز ـ پرځمکه باندي يا پرځمکه ـ پرزړه باندي يا پرزړه ـ

پرسرباندي یا پرسر — پرزړه یو څه پرخوله بل څه — پروخت — پرکور — پرکابل — پرلسو بجو — پر ١٣٥٦ کال اود اسې نور ۰ پرهم د (په) غوندې زوړ پای نوموړنه پرأونتسپرونه أړ زي ۰
له کندهاري اوتاريخي ادبي پښتو پرته نور زياتره گړدودونه (په) او (پر) سره گډ وي پريوه وخت ياد واړه په الي — ارتباطي او تسلسلي مانا کاروي په بله وينا دواړه د (په) پاره پرځاي کوي او ياد واړه په استعلايي مانا پايه بله زيه دواړه د (پر) دنده ترسره کوي ۰ لکه د (په پښتو ليکل) او (پرپښتو ليکل) بيالگي چې د (په) په برخه کې راوړل شوي ۰ په يوه کره ليکنۍ پښتو کې د دغه دواړو سربلونو توپير ضروري دي ۰ يوځينې ارهم دادي چې د وه توکونه يا دودونه په تاريخسي اواتمولوژيک ډول هيڅکله هما نيزاو همپازيزنه وي د همدغه اړ په ترڅ کې سپمايسې ارهم سمباليزي که په گړنۍ ژبه کې دغه ارونه د ومره پرځاي هم نشي مگر په ليکنۍ ژبه کې څواړخيز گټور نقش لري ۰ توپيريانه گڼل ورن — کارويش او پيپژا دنرۍ دهري ژبنسټ جوړ وي ۰ په دي توگه په کار دي (په پښتو ليکل) دااسې مانا کړ و چې يو څه په پښتو ژبه ليکل کيږي نه په بله ژبه ا (پرپښتو ليکل) دامانا چې د پښتو په باره کې څه ليکل کيږي نه د بلې ژبې يا بلې موضوع په باب همدارازپرکابل اوسيږم دامانا چې د کابلښار په شاوخوا کې اوسيږم اوپه په کابل کې اوسيږم دا چې دننه په کابل يا کابل ښار کې ۰ په پارس کې هم د (به) او (بر) توپير په زړه ادب اوا وسنې ايراني ادب اوليکه کې پوره څرگند دي ۰ د (پر) بل اوستربل (سربيره) دي چې ناکره ډول يې (برسيره) هم لزو لپير دود لري ۰ دغه ارستربل هيڅکله نه غورځول کيږي که نه مانايې له (باندي) سره گډ يږي اوپوکيږي ۰ پرد ويپکو مخري (اداتي ضمير) — پري — پرځاي کارول چې کندهاري گړدودواړه لري هم د ياد شوو ژبنيو ارونو له مخې په ټوليزه ليکنۍ پښتو کې د منني وړنه بريښي ۰ همداسې تر اوپه هم د رواخله چې له تري اوپن يا پري سره گډ ول گڼل ورڅي پيښوي ۰

٣ — تر — چې د (پر) بله (مقابل) سربل دي هغه دا چې ترهر څه د مخسه د پرغوندي د (باندي) نه چې د (لاندي) اندښندي له دي کبله يې لومړي اوستربل (لاندي) دي چې هيڅکله غورځيدنه نه منی لکه (ترميز لاندي) چې (ترميز) بيا گرد سره باله مانا ښندي

اوهغه تونی او مهالی پیوستون دي لکه ترننگرهاره ــ ترمازیگره چــې اوستربل (پوري) یـــې هرو مرومتلتیانکوي ٠ دریم اوستربل یې (وروسته) یاراوروسته کرول دي‌لکه ترغرمې وروستـه یاتــرغرمی راوروسته ــ ترخلمی وروسته‌زما واردي ٠٠٠٠ له خلورم اوستربل څخه (ځنې ــ نه) سره پرتلیز جاج ښندي لکه ترتاڅخه زه‌ښه یم چې‌دغه اوستربل په‌غورځیدو (ترنا) هم سم راځی ٠ د دي‌پرځاي‌چی دنورو ژبو په‌پیښـــــو ــ سزنی کال دپروسز کال په‌نسبت ډیروروندي (بارنده) دي ــ ووایو (سزنی کال تریروسز کال ډیروروندي دي ) لنډ اوکره راځی ٠ (تر )په دغه پرتلیزه (نسبتی یاتدرجی )مانا له(له) سربل سره هممانیزکیږي خودچی ( له ــ څخه ) ترهر څـه دمخه وتون پیر(منشایی )حالت څرګندوي ٠نو بیاهم له( ترــ څخه ) سره یې ګډ ول په‌کارندي‌ــ یالز ترلزه (ترتاځنی )وکارول شی ٠ له‌تولوبیکي (اضافت توري )ــ دــ سره یې ونجول هم یی ځایه دي لکه ننگرهاریان چی وایی : دکوره په ساراخوښ یم ــ دویشه په تالا ٠ خوداچی په‌ګډه کره لیکی‌پښتو کی دلته دپرتلی مانا موخه ( مطلوب ) ده‌نو (ترکوره پرسارا خوښ یم ــ ترویشه پرتالا ) تري سم برېښی اوله‌کوره پرسارا خوښیم ــ له ویشه‌پرتالا ) دومره تیــک اوغوره نه راځـــی ٠

دغه راز په ختیزوګرډ ودوکی د (په )ــ (تر )ــ (له ) پرځاي‌هم زیاتره (د )کارول کیږي چی دا هم له ژبنیو او معیاري‌ارونو څخه چپ بلل کیږي لکه دخلمی پسیــ دننگرها ر پوريــ دمیزلاندي‌ــ دننگرهارنه ــ دخلمی سره دکدهاره راغلم ــ دپښتو ټولنی دلغاتو دځانګی دخوا ــ دتانه یاستانه زه‌ښه یم ٠٠٠٠ کره‌ډول یې : په‌خلمی پسی ــ ترننگرهارپوري ــ ترمیز لاندي ــ له ننگرهاره له‌خلمی سره له کدهاره راغلم ــ د پښتوټولنی دلغاتو د ځانګی له خوا ــ ترتا (څخه )زه‌ښه‌یم ٠٠٠٠

٤ــ له ــ چی له( څخه ــ نه یا ځنی ) اوستربل سره له‌اره دیوه‌نوم (وتون پیر) منشایی حالت څرګندوي لکه له سیستانه‌یا له سیستان څخه یا له سیستان نه اویا له سیستان ځنی ٠ په‌دیمه (نسبتی )دانایی کارول یې دومره کره‌نه برېښی لکه پاس‌چی ورته ګوته ونیول‌شوه ٠

(له) له دویم اوستربل (سره سره د ملگرتیا (معیت) جاج ښندي لکه له ځلمي سره تر هرات پورې ملگري وم او داسې نور. په دغه مانا یې اوستربل (سره) پر (څخه یا څه) اړول لهگېږي کره لیکې پښتو څخه چپ بریښي په بله وینا باید (له ځلمي سره) او (له ځلمي څخه) په یوه مانا ونه کارول شي . دریم اوستربل یې (وروسته) دي چې مهالي او تونې کړول (قید) ورسره جوړوي او له (تر) سره یې پازه یو کیږي لکه لرغونې وروسته کورته ځم چې البته (ترغونې وروسته تري) زیات غوره بریښي په بله وینا (وروسته) د (له) نه بلکې د (تر) معیاري وستربل دي . څلورم اوستربل یې (راهیسې) دي چې یو مهالي کړول ورسره جوړوي لکه له پرونسز کال راهسې ـ له ډیرو کلو راهیسې ـ له پخوا راهیسې .... نا کره یې : د پرونسز کال راهیسې ـ د ډیرو کلو راهیسې ـ د پخوا راهیسې ...... په دې توگه (راهیسې) د یوه او ستربل په توگه باید په (نوم) سیده ونښلول شي اویل کوم زیاتې اوستربل یا بل ژبنی توک تري د مخه نشي په بله وینا (له ډیرو کلو څخه راهیسې) نه بلکې (له ډیرو کلو راهیسې) وویل شي (د ډیروکلو را په دېخوا) هم مانیـز اندول دي خود پارسي (ازسالهابایـنطرف) تکي پرتکې اړونه د ه اود ومره رواني اولنډون هم نلري . د (له) پنځم اوستربل (پرته) دي چې د (سره) بېل او مقابل جاج ښندي د امانا چې د اړوند نوم ملگرتیا نه چې بیلتیا اونشتوالی څرگندوي لکه له بللیو پرته نابللي هم راغلي وو .

۵ـ بې ـ چې زیاتره د (نا) غوندي یوستاینومیز (صفتي) مختاړي دي لکـه بې کوره . خولز وډیره سربلی ځانگړتیا هم لري او هغه هم زیاتره د (له) په ملگرتیا او د یوا ځینې اوستربل (څخه ـ نه یا ځنې) په درلود لو ، لکه بې له تا څخه ـ بې له هغه څخه چـې ـ له تا او بې له هغه هم ویل کیږي مگر (بې تا) ویل کیږي او (بې هغه) نه .

(بې) تل یو خپلواك سربل نه دي .

٦ـ و ـ یو پخوانی سربل دی چې له (ته) او ستربل سره ورتلون پیر (مفعول له حالت) څرگندوي چې پخوانې څرك یې په لویدیزو (کندهاري) گړ دود وکي پاتې دي اونورو تولو گړ دود وله لاسه ورکړي اود هغه اوستربل (ته) یوستري کاروي لکه : وتاته وایم ـ وښوونځي ته ځم ...

د منځنی دوري شاعرانو هم ډیر کارولی اولا کله یې د ویمخلی ترنوم وروسته هم راوړي او اوسترېل (ته) سره بیا هم پتلیز (جرخت) نښلولی لکه رحمان بابا چې وایې : خدای وماوته ښکاره کړ هغه لمریا ... ... بیا ... (ه) ... بې ... هم کارولی دي لکه : پیرمحمد کاکړ چې ویلی دي : سوزگداز د محبت هسې وماړا ... په هره توگه د ویونکو د ډیر بنت په لاسوند تر (و ــ ته)، (ــ ته) زیات معیاري ارزښت لري .

۷ــ د ــ که څه هم په ترلیز توول یو تولوییکی دیخوله (غوندي) اړداسې نوروتشبیهی اوتونې ویکو سره د سربل په توگه هم راځي خوبیا هم د تولوالی ځانگړتیا نښې لکه د علمی غوندي پــه رنگ ــ پرځیر ــ په ډول ــ په راز ــ په توگه ــ لپاره د کوردننبه ــ د کورد باندي .... چې ترکوردننه ــ ترکور د باندې بابه دانا ورکړي . چاپیر ــ چارچاپیرپاگرد چاپیر ــ تاوراتاو ــ کښته ــ پورته ــ پاس ... هم د تر اوسترېلونه دي . پرپورتنیو ویکو سربیره ځینې نور راز راز ویکی هم شته چې په غونډو له کې بیلا بیلې پاڼي لري په دوي کې د ځینو پاڼي صرفي بلل کیږي او ځینو نحوي او ځینو د واړه ډوله . صرفي لکه (به) چې د نا بشپړ اونا خبري (لکه گوماني) اړ او ستر مهال کړ یږونك جوړ وي یا (نه) اړ (مه) چې کړ نفي یانهي کوي . یا (که) چې اړ ویکی دي . غونډو له پوښتنیزیا نحوي لکه (نه) د منفي ځواب په توگه ــ (هو) د مثبت ځواب په توگه. چك (ولی نه) هم ځواب په توگه ــ (سره) په صرفي ډول لکه سره تلل ــ په نحوي ډول یاپه بله وینا د اوسترېل په توگه لکه له ځلمی سره ولاړ ــ (بیا) د کړ ول او هم اړیکوییکی په توگه ــ (مگر) یا (خو) د اړیکوییکی په توگه ــ کورت ــ بیخی ــ چور ــ هډو ــ سوچ ــ چورلټ ــ ورت ــ بیخپوره ــ لا ــ ان ــ هن ــ ایله ــ په متهی یا متهی ... د مرستیالو کړ لزنو په توگه ــ و ــ یه ــ یا ــ آ ــ او ــ ای د بلن ویکو په توگه ــ (ایا) د پوښتوییکی په توگه . باروییکي لکه اخ ــ ارخ ــ اوش ــ اوه ــ آه .... چې د ناخاپی خوښی یاویري اوداسې نورو هیجانونو (پاریدنو) څرگندونه کوي چې ترا رو او مرستیالوتوکونو وروسته د غونډلی د توکونو د ریمه ډله جوړ وي او پرځپل ځای ځیرل کیږي .

ونا وانبتی یا تکیه کلامونه لکه ماسکه – غوله یا غولی – مړه – یامړې – غوچی – چی دي ... کاکا گوري – ماما گوري ... هم لـــږو ډیر په یوستوو او تړښتی ویکوکی راځي . چی د یا ریلن ویکویا پارویکوغوندې نومونی پازه نه پرځای کوي بلکـــی راز راز ننگیرنی (احساسات) څرگندوي .

## ۳ـ کـــــــړاوونــــــــه

۱ـ کړنه راز گړ دي؟ څه او څنگه څرگندونه کوي ؟

۲ـ مصدر له کړ سره څه اړیکی لري اودغه نومونه (اصطلاح ) د څه لپاره کارول کیده او کارول کیږي !

۳ـ دیوه کړ بنسټ او اساس څه څیز دي اوپه څه نامه یادیږي ؟

٤ـ یو اوړ ون موندلی کړ څومره توکونه اوچارونه د رلوداي شی ؟

٥ـ مهال پرڅو ډوله دي ؟

٦ـ کړنوزي څه ته وایی اوپرڅو ډوله دي ؟

۷ـ وګړي او گڼـه سره څه توپیر لري ؟

۸ـ چاروال ـ بیچار او منځوال کړ په یو یو ساري (مثال) راوبیژنی !

۹ـ کړ نوم یا حاصل مصدر څه ته وایی او څو ډوله جوړیدای شی ؟

۱۰ـ توانی کړ څنگه جوړیږي ؟

۱۱ـ بشپړ ( مطلق ) اونابشپړ (غیر مطلق )کړ سره څه توپیرلري ؟

۱۲ـ لږاولنډ کړ په یو یو ساري ونښیاست ؟

۱۳ـ کوزاتیف یا لیږنند چار کړ څه ته وایی ؟ له یوه ساري سره یی ونښیاست !

۱٤ـ کړول څه ته وایی ؟

۱۵ــ دا ژروسته غونډ ونه یا عبارتونه کوم کوم ډول کړ ولونه دي او په غونډ لو کښ څه پازي پرځاي کوي ؟

په سیرانه ــ په ځغرده ــ په ډاګه ــ ډانګ پیلي ــ هرو مرو ــ هیڅکله ــ ژر ــ ژرژر ــ ورو ــ په ورو ــ په زور ــ په خوښه ــ په ناخوښه ــ ورووړو ــ دلته یا دلی ــ هلته یا هلی یاهله ــ دننه ــ دباندي ــ دلاندي ــ شاوخوا ــ گرد چاپیر ــ دپاسه ــ کښته ــ له کښته ــ پورته ــ له پورته ــ په لوي لاس ــ په غلا ــ په پټه ــ په ښکاره ــ په ښرګنده ــ په غوږ اوږ یاپه غوږ مالی ــ په ټیټو سترګو ۰۰۰۰ نن ــ پرون ــ وړمه ورځ ــ سږ کال ــ پروسږ کال ــ کال ته ــ بل کال ته ــ پسرلی ته ــ دشپی ــ دورځی ــ غرمه ــ مازیګر ۰۰۰۰

٤ــ کړ اوونه ( تمرینونـــــــه )

۱ــ سریل څه ته وایی او ستریل څه مانا ؟

۲ــ پښتو ډول څو ستر بلونه او او ستر بلونه لري او هغه کوم دي ؟

د دي لاندي غونډ لو تشځایونه په سمو سربلونو او اوستربلونو ډک کړي ؟

۳ــ ۰۰۰ کابل کی دژمی ساړه وي ــ ۰۰۰ زړه به دي یوه وي ــ دریبښه په شی بله ــ زه ۰۰۰ لیکانی سره لیکل کوم ــ زه ۰۰۰ انګلیس ۰۰۰ روس ښه غزیداي شم ــ کوچیان داوړي ۰۰۰ کابل وي او دژمی ۰۰۰ ننګرهار ۰۰۰ اوس ــ زما په کالیو ۰۰۰۰ مه خانده ! سپین ۰۰۰ تور اوښتل یابدلیدل ــ اوبه ۰۰۰ ډانګ بیلول ــ ۰۰۰ زده کړي پس ملا وتړه ! په تا ۰۰۰ اړه نلري ــ زه کور ۰۰۰ پنځو بجو ځم ــ ۰۰۰ غره باندي واوره اوري ــ ۰۰۰ ډیوي لاندي تیاره ده ــ ځلمی سرییره زمري هم راغی ــ ۰۰۰ ځلمی پرته نور ډول ولاړل ــ ۰۰۰ ډولګی دننه ــ ۰۰۰ ډولګی دباندي ــ سپوږمی ۰۰۰۰ منځ داسمان راغله ــ یاخوخوب نشته یا خوما ۰۰۰ نه راځینه ــ که غم ۰۰۰ غمه شرمیدلاي ــ ۰۰۰ مابه نه راتلاي ځولی ځولی غمونه ــ ۰۰۰ تور ټوپک ویشتلی راشی ــ

دبی ننگی اوازدې مه را ځه مینـــه ! دیار ۰۰۰ پاره درمســـال جاروکومـــــــه ۰۰۰

گودر سور سالو بنـــــــکاره شـــو ـ اشنامی سر۰۰۰۰ وطن کیښود ـ ۰۰۰۰۰

تار د زلفو به کېن ورته گنډ مه ـ که زما عمر ۰۰۰۰ ضرور وي تیر به شینه ۰۰۰۰ لویو غرودخدای

نظردي ۰۰۰ لمن ۰۰۰۰ یی زیږ گلونه ـ که ولاړ شی ۰۰۰ بلخه درسره ده خپله

برخه ـ گلاب ۰۰۰ اصله شاهزاده دي ـ رامبیل چامبیل یی اردلیان ورسره ځینه ـ ۰۰۰۰

گودر څه کانه راوشوه ـ چی کشره خوریی ورسره گودر ۰۰۰ ځینه ـ ما ۰۰۰۰ په سرو زرومنظور

دی ـ که دجانان ۰۰۰ لاسه توري خاورې وینه ـ خپه پرې نه یم ۰۰۰ جانان سره به یمـه ـ

۰۰۰۰ خدارو سترگودي جارشم ـ چی ۰۰۰ ژړ اشی مرغلري تویوینه ـ ۰۰۰ وچه ېاگـــه

دلونگو بوي راځینه ـ زما ۰۰۰ تشه خند استه ـ مابه جانان ۰۰۰ لاس نیولی گرځوونـــه

که شینکی خال می دچړ و ۰۰۰ څوکو ځینه ـ چی ۰۰۰ سنگره پورې زه درسره ځمـــــه

سپوږمی ۰۰۰ دي څه احسان دي ـ زما جانان ۰۰۰ دیواله سیوري ته ځینه ۰

دپښتو گړونو ( مور فیمونو ) دډلبندۍ انځور لیـــــــــــک



## د ويـــــــه برخـــــــه

### غونډ له پوهه ( نحـــو SYNTAX )

لکه څنګه چې دغږ پوهنې د وېيينې يوون ( د بحث واحد ) غږ دي او دګړ پوهنې هغه ګړ دي۰ نو دغونډ له پوهنې د وېينې يوون غونډ له ( جمله ) ده ۰ په بله وينا غونډ له پوهه د غونډ لو ـــ دغه راز دغونډ ونو ( فقرو ) او ګڼ نو ( ايډيمونو ) جوړ ښت او په ولونه ترکتنې او وېينـــې لاندې نيسي ۰

غونډ له ( جمله ) :

غونډ له دګړ ونو او ټيېزنو يو ډاسې او ډ لړ غونډ ( کل ) دي چې يو بشپړ جاج ( مفهوم ) او نوخه ( مطلب ) او ډي پوهول کيږي ۰ له بله پلوه داچې خبري يا وينا په غونډ لو کيږي او ډ غونډ لو خبري او وينا نه تر سره کيږي ۰ نو داسې يې هم پيژندلای شو :

غونـــډ له دخبرو ـــ وينا يا ګړ هار هغه بشپړ خپلواکه ناشنونې رغاونه ده چې تيري بلـــه ستره رغاونه نشته ۰ په بله وينا : غونډ له دخبرو او وينا تر ټولو لوي يوون ( واحد ) دي ۰

دغونډ لې جوړ ښـــــت :

غونډ له لومړي پړ ه وو برخو يا غونډ و نو ( فقرو يا ګروپونو ) وېشل کيږ ي چې يـــــ يوه ته نوموال ( اسمي ) او بل ته کړ وال ( فعلي ) غونډ وايي ۰ دپاژي له مخې نوموال غونډ ته ايښي ( مسند اليه ) او مبتدا ۰ ـــ او کړ وال غونډ ته ايښوونې ( مسند ) يا خبر هم ويل کيږ ي ۰

په ايښي کې ياکړ ند له خپلواړ وند و سره راځي ( که په چاروال کړ اړ ه ولري ) او يا کړ ي له خپلو اړ وند وسره ( که په بيچار کړ اړ ه ولري ) ۰ په ايښوونې کې کړ او کړ ي د واړ ه له خپلو اړ وند و سره راځي په دي آړ چې کړ چاروال ليږ ندوي که نه يوازې کړ له خپلو اړ وند وسره راځي ۰ دکړ ند او کړ ي اړ وند ونه ستاينوم ـــ شمېر نوم ـــ تولنوم ( مضاف اليه ) ـــ تولوييکـــې ـــ پيژند وييکي او داسې نور ضروري وييکي کيداي شي اړ دکړ هغه کړ رلونه ( قيد ونه ) ۰ په دي

توگه‌تول لوي اووار ه یا خپلواك (ازاد) اوناخپلواك یا ناوریدونی گروسه اوتوکونه په یوه غونډله کی راغونډیدای شی اود همدغو توکونو په کموالی اوزیاتوالی سره زري یا لوي غونډلی منځ راځی ۰

دیوې غونډلی دښتوالی لزه کی اړ یا بنیادي توك گردان شوي‌کړ دي ۰ که هرڅومره ژبنی توکونه سره لزې ځ شی اوکړونه لري ۰ غونډله جوړ والاي نشی اویه سرچپه ډول پخپله گردان شوي‌کړ دیوې‌غونډلی لزه کی انداره ده لکه خورم – خښم – ځم اوداسی‌نور۰ ځینی نادوده یا غیرعادي غونډلی چی کړ ینی غورځی اوبیا هم غونډلی بلل کیږي هغه بلی غونډلی یا ندائیه غونډلی دي لکه ؛ یه پښتیانانا ! یه ځلمیه ! دغه راز – هو – نه – بنه ښنگه – ولی اوداسی نور ... نستو مځري هم نیمگړي یا اندې ي کړ شوي‌غونډلی دي هغه هم دخبرو اترو اودیالوگ په ډ رل لکه چی یووواین : ته ناروغ یی – بل داسی‌ځواب واین : هو – نه – ولی – ښنگه اوداسی نور ۰

اوس دیوي پوره ساده غونډلی خوبیلگی وراندي‌کوو :

١– <u>ځلمی</u> <u>راغـــس</u>
اینــی اینـونی

٢– <u>دځلمی وررور</u> <u>راغـس</u>
اینی اینـونی

٣– <u>دځلمی مشرورور</u> <u>نن کابل ته راغی</u>
اینی اینـونـــس

٤– <u>دځلمی یوورور</u> <u>نن له کندهار څخه کابل ته راغی</u>
اینـــس اینـونـــس

٥– <u>ځلمــــــس</u> <u>لیک‌کازي</u>
اینی اینـونـــس

٦– <u>یوهلك</u> <u>یو لیك‌کازي</u>

٧– <u>یولیك</u> <u>کښل کیږي</u>
اینـــس اینـونـــس

په لومړۍ غونډه له کې هم اینښ (مسندالیه) له یوه ساده کړند څخه جوړ وي او هم اینښونې له یوه ساده کړ څخه . په دویمه غونډه له کې اینښ له داسې کړند (وروړ) څخه جوړ دي چې (ځلمی) ورسره د تولنوم (مضاف الیه) او (د) ورسره د تولوییکي په توګه اړوند (متعلق) بلل کیږي خو اینښونې لا هماغسې یو یو ستوي کړ (راغی) دي . د دریمې غونډه لی د اینښ کړند (وروړ) یو ستاینوم (مشر) ــ یو تولنوم (ځلمی) او یو تولوییکي (د) د خپلواړوندونو په توګه لهځان سره ملګري کړي او په اینښونې کې کړ (راغی) له ځان سره یو مهالسی کړ ول (نن) او یو تونی کړ ول یا په بله ژبه مفعول له (کابل ته) د خپلو اړوندونو په توګه ملګري کړي دي .

د څلورمې غونډه لی په اینښ کې کړند (وروړ) له ځان سره یو پیژند (یو) د (حرف تعریف) ــ ځلمی د تولنوم او (د) د تولوییکي په توګه ملګري کړي او په اینښونې کې یې کړ (راغی) یو مهالی کړ ول (نن) او دوه تونی کړ ولونه (له کندهار څخه) او (کابل ته) په خپلی اړوندو کې لري . د لومړي تونی کړ ول په دروتوکونو کې (کندهار) د سربل اوږ اوستربل (له ــ څخه) په ملتیا وتونپیر (مفعول منه حالت) موندلی دي او په دویم تونی کړ ول کې (کابل) د اوستربل (ته) په ملتیا ورتلونپیر (مفعول له حالت) .

سرله پنځمې څخه د پورتنیو څلورو غونډه لو پرخلاف د نالیزند (لازمې) کړ ځای لیزند (متعدي) کړ نیسي او په دې توګه یې کړي (مفعول) ته هم اړتیا پیدا شویده . د پنځمې په اینښ کې کړند (ځلمی) ښیوسبتوي راغلی او په اینښونې کې یې کړ (کاړي) له کړي (مفعول) سره ملګري شوي او په شپږمه کې اینښ د تولنوم (عام اسم) په توګه له هلك سره د پیژندنې او تاکنې لپاره ورسره پیژند (یو) هم ملګري کړي دي او همداراز د اینښونې له کړي (لیك) سره هم یو پیژند . د لومړي پیژند پرځای بل بول پیژند (څوك یا کوم) او د دویم پیژند پرځای بل پیژند (کوم) هم راتلای شي په بله وینا (یو هلك یو لیك کاږي) (څوك یا کوم هلك کوم لیك کاږي) سره څومره پیز او څرنګیز (کمي او کیفي) توپیر نلري .

اوومه غونډله بیا دپنځمی او شپږمی غونډلی غونډي چارواک لیږندکړنه بلکې بیچار لیږندکړ لري په دې توګه یې کړي (لیک) له خپل پیژند (یو) سره ایښی جوړوي او (کښل کیږي) دیوه تړښتی کړ په توګه ایښوني ٠ دغه رازکړي (لیک) چې دکړندځای نیسي او کړ وړیوري اړه (اسناد) پیداکوي ٠ نوړه دودیزه نمونه یې (نائب فاعل) بولي ٠ دادي دپوره څرګند تیاپاره دخو بیلګو غونډله لو انځور لیک (ګراف) وړاندي کوو :

١ــ نالیږندە غونډلـــه :




٢ــ چارواله لیږندە غونډله :



۳ـ بیچاره لیزندء غونډ لـــه :




دغونډ لی رغنده توکونـــــه :

پاسمو پردوو برخو (اینبی او اینبونی) دغونډ لی ویشنه وکړه دلته غواړو په تولیزډول پې تول رغنده توکونه (ګروته) ترکتنی لاندي ونیسو اوډهغو دخومره والی لمخی دغونډ لي جولیز (شکلي) ډولونه ونومو و . دغه توکونه تول ازاد یا خپلواك ګړونه اولـه ناخپلواکو یا تړلیو ګړونو څخه یواځی ویکی را اخلی ۰ البته تاړي دازادو ګړونو دنه جلا کیدونکو توکونو (اجزاوو) په توګه دغونډ لن سیده توکونه (عناصر) نه بلل کیږي په دي توګـه یی که ازاد توکونه اوړون موندلی ـ بیلبنـــتی (اشتقاقی) او تړبنتی (ترکیبی) هم وي دغونډله پوهی (نحوي) له پلوه بیاهم د شننی وړ نه دي بلکی هریو دغونډ لی یو یواځینی تـــــوك (جزء) یا توك (عنصر) او یا یوون (واحد) ګڼـل کیږي لکه : خورم ـ خورو ـ خوړلـــی ـ خوړونکی ـ خوړل ـ ورکوم ـ ورکوو ـ ورکړي ـ ورکوونکی ـ ورکول ۰۰۰۰ زمري کیدل ـ کـــول ـ لاسته راوړل اود اس نور ۰ دساري په ډول (زه خپلو شاګردانو ته په درنه سترګه ګورم) ۰

غونډ له په نحوي ډول اته توکیزه بلل کیږي چې ځلورې (زه ـ ته ـ په ـ سترګه) ساده توکونه (ګړ ونه یا ویپونه) دي او ځلورې (خپلو ـ شاګردانو ـ درنه ـ ګورم) داوړ ونې (تصریفي) تاړ و په درلودلو سره اوړ ونې توکونه (ګړ ونه یا ویپونه) دي . یا (ځلمي یو کتاب ترلاسه کړي دي) په غونډ له پوهیز ډول یوه پنځه توکیزه غونډ له ده چې یې (ځلمي ـ یو ـ کتاب ـ دي) ساده توکونه (ګړ ونه یا ویپونه) دي او (ترلاسه کړي) یو تړ ښتي توک یا ګړ او یا ویې . ځکه له شننې سره یې اوسنی یواځینی مانا له منځه ځي او تړ ښتي چاج له لاسه ورکوي .

دغونډ لې توکونه په لاندي ډول ډلبندي کیږي :

۱ـ اریاخپلواك توکونه چې تول ازاد ګړ ونه را اخلي . نومونه (څیزنومونه ـ ستاینومونه ـ شمیرنومونه ـ نومځري) ـ ګړ ونه (ار ـ مرستیال یا ساده ـ بیلښتي ـ خواپرخوا ـ تړ ښتي) او کړ ولونه (اراونا ار) دي .

۲ـ مرستیال توکونه . چې په دوي کې ناوړ یدونې ګړ ونه (ویکې) راځي لکه اړیکو ییکي ـ تړ وییکي ـ سریلونه ـ او ستربلونه اوداسې نور .

۳ـ په دریمه ډله کې انګیو ییکي ـ پاروییکي ـ بلن ویکي اوداسې نور راځي لومړي ډ له (ارتوکونه یا خپلواك توکونه) دموضوع ځرنګوالي ـ څومره والي ـ چاروالي (فعالیت) اوداسې نور جاجونه (مفهومونه) نوموي اویا ورته نغوته کوي یاپه بله وینا هم ویپزه (لغوي) مانا ښندي هم پښوییزه دغه ډلـه ارزو کړ ولونه پرته ټول اوړ یدونې ګړ ونه را اخلي .

دویمه ډ له (مرستیال توکونه دنومونې او نغوتنې پازه نه بلکې یواځې پښوییزه مانا اوچار لري . مرستیال ورته په دي وایې چې دغونډ لې دارو توکونو ـ غونډ ونو او غونډ لو ترمنځ اړیکې ټینګوي .

په دریمه ډ له (پاروییکي ـ بلن ویکي ...) دنومونې پازه نلري او دبیلا بیلو ځانګړ و ننګیرنو ځرګندونه کوي پاروییکي لکه دخوښي (واخ ـ وخ ـ اوخ ...) یا

۱ــ یو سړي ــ راغی یا : یوه سړي ــ ډوډۍ وخوړه .

۲ــ یوغټ سړی ــ راغی یا : یوه غټ سړي ــ ډوډۍ وخوړه .

۳ــ دځلمی مشرورور ــ ولاړیا : دځلمی مشرورور ــ وینا وکړه .

٤ــ دځلمی دوه ورونه ــ ولاړل یا : دځلمی دوو ورونو ــ ویناوي وکړي

٥ــ دځلمی دوه مشران ورونه ــ ولاړل یا : دځلمی دوومشرانو ورونو ــ ویناوي وکړي .

٦ــ زما یو کشرورور ــ کورته ولاړیا : زما یوه کشرورور ــ واده وکړ .

په اینبونۍ کی کړ(آریا مرستیال) ترنورو توکونو وروسته راځی که دغه کړله دووغبرګو (آر او ناآر) کړ شخه جوړ وي نو آر تر مخه او نا آر(مرستیال) وریسی بیخی پای ته راځی . ترکړ (اریا مرستیال) دمخه کړي (که کړ چاروال لیزندوي) او کړي بیا له خپلو اړوندونو وروسته ځاي نیسی . کړول (که چیريوي) زیاتره ترکړي دمخه راځی خو که دوه کړولونه په یوه اینبونۍ کی راغلی وي او یو مهالی اویل تونی یا بل ډول وي نوزیاتره مهالی له تونی یابل کړول اوکړي شخه مخکی کیږي . تونی یا بل کړول بیا کیداي شی ترکړي وروسته ځاي ونیسی لکه په دي لاندي غونډ لو کی :

۱ــ زمري ــ نن ازموینه ورکړه .

۲ــ زمري ــ (نن) (په بریالیتوب سره) ازموینه ورکړه .

۳ــ زمري ــ (نن) (له خپل ورور سره) (له کندهاره) (کابل ته) راغی .

په پاسنیو غونډ لو کی (نن) مهالی کړول دي (په بریالیتوب سره) او (له خپل وروروسره) شرګندنی او (له کندهاره) او(کابل ته) تونی کړولونه دي . همداراز (ازموینه) او (خپله ازموینه) کړي (مفعولـــونه) بلل کیږي .

دغونډ لی بشپړ اند توکونه :

سرپیره

یوه غونډ له پربورتیو نومول شویو توکونو ځینی بشپړ اند (متمم) توکونه هم لري لکه اخج ــ اهنګ ــ بیلتون اوپیوستون اودغونډ لو دپای غاړه (لحن) . دغزپوهی له مخـــــ

دغه ځانګړ تیاوي(خصوصیات) دویمنی اوازونه( فونیمونه) بلل کیږي چې دلومړیو یا اروااوازونو (لکه ا ــ ب ــ پ ــ ت ــ ټ ۰۰۰ ي ) غونډې دګړ هار په بهیر کې دپرله پسیوالی یاتسلسل (لینیأل )لوونه نلري او دغونډ له پوهې له مخې هماغس مانیز او چاریز (تعاملی یافنکشنال) نقش او اغیز لري لکه ارتو کونه (ګړ ونه) ځکه دغونډ لو مانیز اوپښوییز ولونه سره توپیروي ۰ نوله دي کبله خج ــ اهنګ ــ بیلتون او پیوستون اودغونډ لو دپاي غاړ ه (لحن ) دغونډ لی بشپړ اند توکونه بلل کیږي ۰

۱ــ اهنـــــګ :

دغونډ لو اهنګ څلور ډوله دي : خبري اهنګ ــ پوښتنی اهنګ ــ هیښنی اویلنی (تعجبی اوندایی) اهنګ او امري‌اهنګ ۰ په بله وینا خبري ــ پوښتنی ــ هیښنی اویلنی اوامري‌غونډ لی سره دخپلو ځانګړ و اهنګنــو په مرسته توپیریږي ۰[1]

۱ــ دخبري‌غونډ لی اهنګ اوارپیل کیږي اوبیا غورځیدلی پروت پاي ته رسی لکـه : زمري ــ راغی ۰



۲ــ دپوښتنی غونډ لی اهنګ ټیټ پیل موس او بیا نیغ شوي پروت پاي ته رسی لکــه : زمري ــ راغی ؟



که په سرکی یې پوښتنو مخري یا پوښتوییکی راشی بیانو اهنګ په سرکی لوړیږي ۰

۳ــ دهیښنی ــ بلنی ــ ګومانی اوداسی نورو غونډ لو اهنګ کابو یوراز راځــی اوهغه داچی ټیټ پیلیږي بیا پورته ځی اوپه پاي‌کی ریب پاي ته رسیږي لکه :

زمري ــ راغــی !



۲ــ خـــج :

لکه څنګه چی په‌غږ پوهه کی ورته نغوته وشوه ۰غونډ له یېز خج هماغه پیاوړي خج دي چی دنورو توکونو په ترخ کی یې پریوه راشی اوهماغه خجن توک تر نورو توکونو زیات موخن

---

۱ــ دلته له پوهاند الهام څخه الهام اخیست شوي( روش جدید د رتحقیق د ستور زبان دري ۱۴۲ ــ ۱۴۴ مخونه ــ همدا راز د زبار دژبپوهنی بنسټونه هم دپاملرنی وړ دي ۰

(مطلوب) ښيي . نور ټوکونه يا هيڅ خج نلري او يا د هماغه يوه پياوړي خج تر اغيز لاندې کمزوري ويل کيږي . په دې ډول د ړي رازه غونډ له ييز خجونه سره توپيرو . پياوړي ـ لږ پياوړي او کمزوري لکه د اولميږ په دې سند ره کې ( ستاد سترګو بلا واخلم بيا دې سترګې ولې سرې دي ) پر ( ولې ) پياوړي ـ پر ( واخلم ) لږ پياوړي او پر ( سترګو ) کمزوري خج اوريدل کيږي .

۳ـ بيلتون او پيوستـــــون :

بيلتون او پيوستون د امانا چې دغونډ و يا غونډ لو د پاي وييونه سره پيوست اوبې لارغه (بې مکثه) وويل شي او يا سره ناپيوست په لارغه (مکث) . په دې توګه که کله د هماغو يوراز غونډ و يا غونډ لو ترمنځ بيلتون پر پيوستون بدل شي او يا سرچپه . نو هغه جاج او مانا يې سره نه توپيريږي چې د ويونکې موخه او مطلب وي . داچې دغه بيلتون او پيوستون يوازې د نحوي يوونو (واحدونو) ترمنځ نه بلکې دغږ پوهيزو هغو ترمنځ هم نقش او اغيز لري نو د خج آهنګ او غاړې (لحن) غونډ پ بيلتون او پيوستون له اره دويمې اوازونه ( فونيمونه ) دي . بيلتون او پيوستون د ليکونکې په دې کړ ( بيت ) کې ښه تراجو تيږي : کړي که بخشش د وصل راز ياره — زړه سوزول پرما ملنګ ښـــــــــه دي .

دلته که (ز) له مخنی ويې يا په بله وينا له مخنی اواز (الف) سره پيوست وويل شـــي مانا يې دا سې راځي چې (يه ياره !) که ماته (د وصل راز) را بخشش کړې اوکه نه (ز) له (ياره) سره پټليزه وويل شي يا په بله ژبه د (الف) او (ز) ترمنځ بيلتون او ـ لارغه را وړل شي بيا د امانا ښندي چې (يه زياره) که ماته (د وصل بخشش) راکړې په دې توګه که د مخنی مانا موخه وي . په کار دې د (راز) او (ياره) وييونو يا په بله وينا د (ز) او (ي) ترمنځ په وينګ (تلفظ) کې لارغه او بيلتون او له بله پلوه د (الف) او (ز) ترمنځ پيوستون راشـــي . او که وروستی مانا موخه وينو په کار دې د (را) او (زياره) يا په بله وينا د (الف) او (ز) ترمنځ لارغه او بيلتون او له بله پلوه د (ز) او (ي) ترمنځ پيوستون راشي .

او که وروستی مانا موخه وینو په کار دي د ( را ) او ( زیاره ) یا په بله وینا د ( الف ) او ( ز ) ترمنځ لاړغه او بیلتو او له بله پلوه د ( ز ) او ( ي ) ترمنځ پیوستون راشي . په دي ډول لومړي نیم بیتي یا غونډه له دوه رازه کاږو :

د لومړي مانا له مخې : کړي که بخشش د وصل راز — یاره !

د دویمي مانا له مخې : کړي که بخشش د وصل را — زیاره !

همدا رنګه د راډیو افغانستان د خبرلو ځانګړي څـایه بیلتون او پیوستون په دي وروسته غونډه لو کي خومره مانیز بدلون پیښوي : د جنوبي افریقا صدر اعظم جان — فورستروویل — د نیپال پاچا دیواندن — خپل هیواد ته ستون شو . په دي توګه ( جان ) د صدر اعظم توك ګرځي نه د فورستر او ( ندن ) د ( دیوا ) توك ګرځي نه یو جلاوي ( کړول ) . لیکښي د نورو غونډي د همدا راز د ویښیو توکونو ( خپ — اهنګ — لحن بیلتون او پیوستون .... ) سمبولونه بلل کیږي .

د اینۍ او اینونی سمون :

د اینۍ او اینونو ترمنځ هماغه سمون مطلب دي چي د ګنې — نوزي او وګړي له مخې د کړند یا کړي او کړ ترمنځ راځي . د ګڼې له پلوه سمون داچي که کړند یو ګړي وي نو کړ ورسره یو ګړي راځي او که کړند ډیر ګړي یا د ډیر ګړي اند ول ( لکه جنس ) وي . کړ ورسره ډیر ګړي راځي د نوزي له پلوه داچي که کړند ښځینه وي کړ ورسره ښځینه کارول کیږي او که کړند نرینه وي کړ ورسره نرینه کارول کیږي او د وګړي له مخې سمون داچي کړ باید له هر یوه وګړي ( لومړي — دویم — دریم ) سره سم وکارول شي نه داسي چي د لومړي وګړي کړ د دویم وګړي لپاره په کار واچول شي او داسي نور . لکه په ګړ پوهه کي موچي ولیدل دغه د ود ( قاعده ) بیدوني ( استثناء ) لري لکه په چاروال لیزند تیرمهال کي چي کړ د کړند نه بلکي د کړي ( مفعول ) اړوند ( تابع ) دي په بله ژبه د ګڼې — نوزي او وګړي له مخې کړ له کړي سره سمون خوري نه له کړند سره . همدا راز دغه سمون په اوس مهال کي یوازي د ګڼې او وګړي له پلوه څه ناڅه ښتینوالي موي مګر د نوزي له پلوه هیڅ نه . په دي وروسته غونډ لو کي د اینۍ او اینونو ترمنځ سمون له ټولو استثناګانو سره لیدای شو :

۱ـ نالیزند تیرمهال :

۱) زه —— راغلم

۲) ته —— راغلی

۳) دي —— راغی

۳)دا —— راغله

٤) موږ —— راغلو

٥) تاسې —— راغلاست

٦) دوي —— راغلل

٦) دوي —— راغلې

۲ـ لیزند تیرمهال ( چاروال ) :

۱) ما —— خټکې وخوړ

ما —— خټکي وخوړل

ما —— هندوانه وخوړه

ما —— هندوانې وخوړې

۲) تا —— خټکې وخوړ

تا —— خټکي وخوړل

تا —— هندوانه وخوړه

تا —— هندوانې وخوړې

او همداسې د دریم وګړي لپاره .

۳ـ لیزنــــد تیرمهال( بیچار ) :

۱) زه —— وخوړل شوم

۲) ته —— وخوړل شوې

. . . . . همداسې ترپایه .

۴ـ نالیزند اوسهـال :

۱) زه —— ځم

۲) ته —— ځې

۳) دي —— راځي

. . . . . . همداس ترپایه .

۵ـ لیزنداوسهال (چاروال) :

۱) زه —— ډوډۍ خورم

۲) ته —— ډوډۍ خورې

۳) دي ـ دا —— ډوډۍ خوري

. . . . . . همداس ترپایه .

۶ـ لیزنداوسهال (بیچار) :

۱) زه —— خوړل کیـــزم

۲) ته —— خوړل کیزې

۳) دي ـ دا —— خوړل کیزي

. . . . . . همداس ترپایه .

نوموالـه اوکړ والـه غونډ لــــه :

که دیوي غونډ لی په اینبونی کی دآریا مرستیالکړ (لکه خوړل ـ کیدل ـ شول) پرځای یوایی (دي) آویا ددغه مرستیالکړ نوري بڼې اوډولونه راشي . هغه غونډ لـــه (نوموالـه) غونډ له یال کیزي که نه کړ والـه غونډ له.لکه زرین ـ روغ دي یا و ـ یا : هلکان ـ ناروغه دي یاو . زرینـــه ـ ناروغه ده یاوه یا : نجونی ـ ناروغی دي یاوې .

دغونډ لی مانیز او ولړنــــه :

غونډ لـــی دکړ دودله مخی په خبري یا بیانیی اوناخبري یا انشایی او یاالتزامی غونډ لو ویشل کیږي .

ا ــ خبـــــــري :

١ــ ببرك ـــــــ ولاړ

٢ــ ببرك ـــــــ تللی دی

٣ــ ببرك ـــــــ تللی و

٤ــ ببرك ـــــــ تــــه

٥ــ ببرك ـــــــ ځـــی

٦ــ ببرك ـــــــ به ولاړ شـــــی

.... او داســـــی نور .

٢ــ ناخبـــــــــري :

١ــ ببرك ـــــــ ولاړ ؟ (پوښتنی)

٢ــ ببرك ـــــــ ولاړ ! (هیښنـــی)

٣ــ ببرك ـــــــ به تللی وي ! (گومانی)

٤ــ (کاشکی) ببرك ـــــــ به تللی وای ! (ارمانی)

٥ــ ببرك ـــــــ د ي تللی وای ! (ټینگاري)

٦ــ (که) ببرك ـــــــ تللی وي (اړوتی)

٧ــ ببرکــه ـــــــ ځــه ! (امري)

٨ــ ببرك ـــــــ به ولاړ شی (گمانی او ټینگاري)

...... او داسی نور .

دغونډ لي‌جوليز ډولونه :

دجولي او څومره والي له مخې غونډ له يو ستوي‌وي ياغبرګه ـ ياګډه اوياګډ لي .

۱ـ يوستوې‌غونډ له هغه رازغونډ له ده چې له دووغونډ ونو ( اينس او اينسونې )

څخه جوړه وي لکه :

ځلمی ـــــ ييوه کوي

پوغښتلي سړي ـــــ په ځغاسته راغی

دکندهار انار ـــــ خوازه دي

بوره ـــــ نشتـــه

... اوداسې نوري . يوستوې غونډ له دنورو درو ډولو پنسټ بلل کيږي .

۱) اره يوستوي‌غونډ له‌چې يې اينس له‌يوه ( کړند ) يا کړي او اينسونې له

يوه (کړ ) ـ او ډليزندپه ترڅ کې ـ له يوه (کړ ) څخه جوړوي اوددوډله مخې ددغو

دروواړو توکو(کړ ـ کړند ـ کړ) اړوندونه له دوو توکسو څخه تيري ونکړي لکه :

زمرک ـــــ ځـــي

زرک ـــــ اويه ځنبـــي .

يوه نجلي ـــــ يو ليکې لولي .

يوه ښکلې نجلي ـــــ يـــوپنډ ليکې لولي

زما يو ملګري ـــــ هيڅکله خپل کورنې کارنه هيروي

۲) ارته يو ستوي‌غونډ له چې په اينس يا اينسونې يا دواړو کې دکړ ـ کړند ياکړي

يادرواړو اړوندونه له دوودوو توکونو څخه تيري وکړي اويه دي توګه پکـــس

زيات ارتوالی راشي لکه : دعراق دعربی جمهوريت رئيس‌حسن البکر ـــــ په بله ميږاشت د

افغانستان دجمهوري دولت پايتخت مرکز کابل ته راشي .

يا : دافغانستان دجمهوري دولت يوه کلتوري ډله ـ دشوروي اتحاد دپوهنو داکادمی په بلنه

هغه هيوادته سفرکوي ... اوداسې نور.

۲ـ غبرگغونه لـــــه :

غبرگغونه له هغه ده چې دیوه اینښ اویوه اینښونې پرځای دوه دوه اینښـــ اواینښونې ولري یاپه بله وینا که دیوې پوهونې او مطلب دبشپړتیا یاد دوو اړوندو مطلبو دڅرگندونې لپاره سره دوي غونه لی په کوم اړیکوییکی یا لارغه( مکث )غبرگی اوملگري شي• یوه غبرگغونه له منځ ته راوړي • داړیکوییکو دوډولونو له مخې سره ډول ډول غبرگغونه لی توپیرولای شو دغبرگغونه لی په دواړو بیلا بیلوغونه لوکی یوه اره یا خپلواکه اویله څرمه (فرعی )یــا بیواکه غونه له بلل کیږي • اره یا خپلواکه په دي مانا چې ار مطلب او موخه یکې څرگندیږي اوځانته په خپلوښود ریداي شی • څرمـــه یابیواکه په دي مانا چې ار مطلب اوموخه یکـــې نه څرگندیږي اوځانته پخپلو ښو د ریداي نشي په دي توگه په یوه غبرگغونه له کې بیواکه یا څرمه له خپلواکې یااري سره دیوه مطلب په څرگندونه کې مرستیاله او بشپړوونکی اوسی • داړیکوییکو له مخې د غبرگغونه لی ډولونه په لاندي توگه ښوول کیږي :

۱ـــ تړ غبرگغونه له : چې دواړه یوستوي غونه لی یکی پهٔ یوه تړوییکی (او) یا لارغی سره یو ځای شوي وي لکه :

زما زوي اووه کلن ( دي) او لورمې شپږ کلنه ده•

یا : زما زوي لس کلن دي اوستا لور دولس کلنه( ده )•

۲ـــ اړوتی غبرگغونه له : چـــې یی یوه ( زیاتره لومړ ی ) یوستوي غونه له بیواکـــه او بله (زیاتره دوېمه) خپلواکه وي • په دي تـــوگه دلته بیواکه غونه له آړ (شرط ) بلل کیږي او خپلواکه اړوتی ٢ لکه :

که ته راشي ـــ زه به راشم•

که وریځ سپینه شي ـــ باران کیږي •

که شمال نه وي ـــ ونه نه ښـــــوري •

دکه په وړاندې داړوتی غونډه لې په سرکی د (نو )اړیکوییکی هم راتلاي شي لکه : که شمال نه وي ـ نو ونه نه ښوري ۰

۳ـ توسنی (علتی )غبرگغونډه له : چی یی دواړه یوستوي غونډه لی سره په یوه یاغبرگو توسنو ییکو( ځکه ـ ځکه چی ـ چی ـ داچی ـ په دي چی ـ نو ۰۰۰) غبرگی شوي وي ۰ په دي ډول خپلواکه توسنی (معلوله ) اوبیواکه توسن (علت )غونډه لهنومیداي شي لکـــه :

زه راغلم ـ ځکه تابللی وم یا : زه راغلم ـ پـه دې چی تابللی وم ۰

تابللی وم ـ ځکه راغلم یا: تابللی وم ـ نو ځکه راغلم ۰

ځکه راغلم ـ چی تابللی وم یا :ځکه راغلم ـ په دي چی تابللی وم ۰

داچی تاویلی وو ـ نوراغلم یا : څنگه چی تاویلی وو ـ نو ځکه راغلم ۰۰۰

٤ـ څرگندنی (بیانـی )غبرگغونډه له : چی دویمه مله غونډه له دلومړۍ هغـی دزیاتی څرگندتیا لپاره وي اوڅیوي پوښتنی ځواب وایی : ددغسی څرگندتیا دڅرنگوالی له مخی دالاندې کوچنی ډولونه دیادولو دي :

۱) موخنه یامراس څرگندنی غبرگغونډه له : چی په خپلواکه غونډه له کی د راغلی مطلب یا پیبنـی موخه په بله څرمه غونډه له کې څرگنده شي لکه :

سنك ایران ته ولاړ ـ چی ځانته کار مزدوري پیداکړي ۰

زه راغلم چی تاووینم ۰۰۰۰۰

۲) مهالی څرگندنی غبرگغونډه له : چی لومړۍ (بیواکه)غونډه له ددویمی (خپلواکی ) غونډه لی څرگندکړي چار اوپیښی مهال اووخت ټاکی لکه :

چی ته راغلی ـ زه به ولاړ شم یا : چی ته راغلی ـ نو زه به ولاړ شم

کله چی ته راغلی ـ زه به ولاړ شم یا : کله چی ته راغلی ـ نو زه به ولاړ شم

سم چی ماوریرانیست ـ پرهغی می سترگی ولگیدي ۰

زه به هله درشم ـ چی ته می وغواړي ۰

یا : زه به هله د رشم -- هرکله چې تا وغوښتم

هومره به دي مړ نکړم -- څو دي رنگ دمړي نکړم

هله به خبرشې -- چې تاروجې له ورشې !

هله به دې په یاد شي -- چې دې پودبوال ته مخ بل ته دي شاشي !

۳) تونی څرگندنی غبرگغوندوله : چې څرمه غونډه له یې داري لپاره تون(ځاي )

وښاکي لکه : چیري دې نه -- هلته دي شپه !

چې نه کار -- هلته څه کار -- ! چې دي نه کار -- هلته څه کار !

چې له کومې راغلې یې -- پرهماغه ځه !

چیري چې اوسې -- په خوي به د هغوي شې یا : چیري چې اوسې -- په خوي به

د هغوي اوسې !

یاد پرد یو ژبو په بې ځایه پیښو لکه :

د هند جمهوررئیس شوروي ته ولاړ -- ( چیري ) چې له شوروي مشرانو سره خبري کوي

دلته ( چیري ) یو زیاتی توك دي ۰ البته له( چې ) سره (کوي ) نه بلکې ( وکړي) راځی ۰

۰(تون ) د زیاتې څرگندنیا لپاره له (چې) سره (هلته ) هم ملگري کیداي شي لکه :

د هند جمهور رئیس شوروي ته ولاړ چې هلته له شوروي مشرانو سره خبري کوي ۰

٤) وگړیزه څرگندنی غبرگغونډه له : چې په د واړو ملوغونډ لوکي راغلې کړندیاکړي

یو (وگړي )وي لکه :

څوك چې خوبکړي -- نركمې به زیږوي ۰

یا : د نورو ژبو په پیښو په نامسم ډول :

ځې : هغو خوارو ته جنت وگڼو -- ( څوك ) چې له مور د وزخیان پیدا دي

دلته د اپایله اخیستلاف شو چې (څوك ) د (چیري ) -- (کوم ) -- ( څه ) --(کله) او د اسې نورو

څرگندنی ا ړیکو ییکو غوندي یواځې د هماغې څرمه غونډو لې په سرکې له( چې ) سره راتلاي شي

چې تر اري د مخه وي د غه توپیر په تیرو د واړو ساریو( مثالو) کې نه ترا لید اي شو ۰

۵) ځیزواله څرګندنی غبرګغونډه له : چې په دوارو ملوغونډ لوکی راغلی کړندونه یا کړي یو (ځیز) وي لکه :

څه چې کري — هغه به ریبي

څه چې وي — هغه به وي

۶) کړولی (قیدي) څرګندنی غبرګغونډه له : چې د دوارو غونډ لوا ړیکو ییکس کړ و لونه وي لکه :

اسري څه — ژوژاچه

یاد دي لنډ ی د یمه برخه : پراویز غرو دخدا ینظر دي — پرسرېی واوري — پرلمن یی زیږ ګلونه

۷) پرتلیزه څرګندنی غبرګغونډه له : چې د دوارو ملوغونډ لو اینس سره د اړیکو ییکو په وسیله اند ول — پرتله یا همځیر شوي وي لکه :

څنګه د یګ — هسې تیپسریا : هسې یې تیپسر (کړ پریښوول شوي)

څنګه غر — هسې یی کیوړي (کړ پریښوول شوي)

یو یی ګیس — سل یې څیس

سل دي ومره — یوندي مه مره

یا : سل دي ومره — د سلو سردي مه مره

سل پنګاڼ سرځی — دیوي شمی ژړ ا سره

۸) اړپیچنه (متضاده) څرګندنی غبرګغونډه له : چې د اري اوخرمی څرګندونی یا اینس سره اړ پیچ یا بډ والی (تضاد یا تقابل) ولري لکه :

که څه هم بازیار ایستلی نه و — (خو) بیاهم بریالی شوم

سره له دې چې ناروغ وم — پوهنځی ته راغلم

یا : سره له دې چې ناروغ وم — خو بیاهم پوهنځی ته راغلم

یا د یوی‌ارتی یوستوي غونډ‌ لی په بڼه :

له نارونی سره سره پوهنځی ته راغلم ·

له‌ولسه وو ځـــه – له نرخه مه ووځـــه

که غر لوي دي – پرسریې لاردی

خپل خپل دي – پردي په ویرو نارو خپل دي

دښمن به دي وخندوي – دوست به دي وژړ وي

شمه که سوزېږي رڼـا هم لري (گوره په خندا کی ژړ ا هم لري )

۹) سرغاړي (منصرفه ) څرگندنی غبرگغونډ‌له : چی دویمه (څرمه)غونډ‌ له یی د لومړی (اري ) له څرگندونی څخه سرزنړ وي او نور زیات څه څرگند کړي لکه :

ځلمی گرم نه دي – بلکی زمري‌گرم دي

یا : ځلمی گرم نه دي– چی زمري‌گرم دي

۱۰) بشپړ انده څرگندنی غبرگغونډ‌له : چی دویمه (څرمه)یی د دویمی (اري) دجاج (مفهوم ) په بشپړو لو یا پراخولو کی مرستیاله اوسی لکه :

خوشال ختـک نه یوازی شاعرو – چی توروزن هم و یا : بلکی توروزن هم و ·

یا : خوشال خټک یوازی شاعر نه و – چی توروزن هم و یا : بلکی توروزن هم و·

یا : خوشال خټک لوي شاعرو – چی لا اتل هم و·

دلته گورو چی (نه یوازی ) د (چی هم)یا (چی لاهم) اویا (بلکی هم) په ملگرتیا د دواړو غونډ‌ لو اړیکی ټینگوي یا‌په بله وینا (نه یوازی ) او(چی هم)یا (نه یوازی ) او(چی‌لاهم ) یا( نه‌یوازی ) او( بلکی هم ) د دواړو ملوغونډ‌ لو تر منځ دبشپړتیا اړیکی څرگندوي ·

همدومره خبره ده چی که د پورړیں ( بلکه یا‌بلکی ) له کارونی‌څخه ډډه وشی نودپټـــی (جبران )لپاره یی په‌هماغه څرمه‌غونډ‌ له کی د اینبی پرار توک باندي یو پیاوړي خج راوړ ل په کاردي‌چی له همدغه خج سره اهنگ هم پټلیز (جوخت) لوړ ولاړ شی·

۲ـ گډه غونډه لـــــه :

گډه غونډه له هغې ته وايي چې په هغه کې له دوو نه زياتې غونډې لې پرله پسې راغلې وي او څرگندونې يې سره يو له بله کوم ډول اړيکې اوار ونډي ولري ۰ او داچـــــې همدغه يوه يواځينې مطلب د بېلا بېلو ملو غونډو لو له مخې په بېلا بېل ډول څرگندېدنه موندلې وي ۰ نوزياتره يې يوه غونډه له خپلواکه يا اره وي او نوري تولې ملې ورسره بيواکه يا څرمه وي په گرتې ( محاوروي ) پښتو کې گډې غونډې لې زياتره له دوو غبرگغونډو لو څـــخه جوړې وي چې په دې ډول په دوار و يو ځاي شوو غبرگغونډو لو کې دارو او څرموغـــونډولو شمير يو پر يو وي لکه په لاندې يو کوږ :

بنه دي چې ستړگي دي ور يدي ــــ که چيري نتهـس واي خور لاي به دي ومه

يار مې دکوټ زه دتيرا يـــــــــــــم ـــ خدايه کوټ وران کړي چې جوړه تيزاله بوله

په لومړۍ لنډۍ کې لومړي برخه (مسره) يوه غبرگغونډه له ده چې اره غونډه له يکې بېيخـــــه او څرمه وريسې ده ۰ دويمه برخه (مسره) يوه بله غبرگغونډه له ده چې څرمه غونډه له له اري غونډه لې ترمخه راغلې ده ۰ داچې په لومړۍ مسره کې دويمه ( څرمه ) غونډه له په څرگندنې وييکـــــې ( چې ) پيل شوې نو ټوله لومړي مسره يوه څرگندنې غبرگغونډه له بلل کيږي او داچې په دويمه مسره کې لومړي ( څرمه )غونډه له په اړوييکو(که چيري ) پيل شوي نو ټوله دويمه مسره يوه اړوتې غبرگغونډه له ده ۰ دواړي مسري (غبرگغونډه لې ) سره بيا په يوه توسنې اړيکي ـــ چې په لارغه څرگنديږي ـــ يوه گډه غونډه له جوړوي ۰ نو له دې پلوه زموږ يا منې لومړي لنډۍ يوه توسنې گډه غونډه له ده چې يې دغريو غونډه لو شمير څلوروته رسيږي او لومړۍ يې (بنه دي ) اره غونډه له بلل کيږي او که دغې لنډۍ ته د دوو غبرگغونډه لو په سترگه وگورو نو لومړۍ غبرگغونډه له (لومړۍ مسره) اره او دويمه غبرگغونډه له ( دويمه مسره) څرمه ده ۰ د دويمې غبرگغونډه لې بيا دويمه ملغونډه له (خور لاي به دي ومه) اره يا اړوتې او لومړۍ هغه يې (که چيري غتهس واي ) څرمه (اړ ) بلل کيږي ۰

او دا هم د لومړۍ لنډۍ (ګډې غونډلې) لنبتيليك (جدول):

| ۰۰۰ اینبونې | اړیکوییکی اینبس | اینبونې | لارغه ۰۰۰ | اینبونې | اړیکوییکی اینبس | اینبونې |
|---|---|---|---|---|---|---|
| له پټ اینبس سره اړه | | خرمـــه | | لهپټ اینبس سره خرمــه | | اړه |

لارغه

| لومړۍ څرګندنې غبرګغونډله | دويمه اړوتې غبرګغونډلـــه |
|---|---|

توسنی ګډه غونډلـــــه

همداراز دویمه لنډۍ دیوې ګډې غونډلې په توګه جوتولای شو او هغه داچې دا هم یوه توسنې ګډه غونډله ده مګر په همدومره توپیرچې دلته توسنې غبرګ غونډه له تړلې (تړغبرګغونډلې) دمخه شوې ده . اوبل داچې تړپولو وروستی غونډه له یې اړه ده او په دې توګه توله دویمه غبرګغونډله (مسره) دلومړۍ غبرګغونډلې (مسرې) په وړاندې اړه بلل کیږي په دې ګډه غونـډه له (لنډۍ) کی دلومړي ملي غونډلی (یارمې ـ دکوټ) اینبونې د (د) په غورځونه چې یوه شعري اړتیاده نیمګړي دي . دغه راز دڅلورمې (اري) ـ اینبس خپلواکه جوله نلري او داچې دلومړۍ غبرګغونډلې دواړي ملې سره یو لارغې تړل شوي یا عطف شوي دي نو یوه تړ غبرګغونډله بلل کیږي .

دا هم ددغې دویمې ګډې غونډلې (لنډۍ) لنبتيليك :

| اینبس \| اینبونې (بې کړه) | لارغه | اینبس \| اینبونې | لارغه | اینبس \| اینبونې | اړیکوییکی | ۰۰۰ \| اینبونې |
|---|---|---|---|---|---|---|
| خرمـــه | | خرمه | | خرمـــه | | بې اینبس اړه |

لارغه

| لومړۍ خرمه تړ (عطف) غبرګغونډله | دويمه اړه توسنې غبرګغونډلـــه |
|---|---|

توسنی ګډه غونډلـــــه

یادښت : پرتوسنې ګډې غونډلې سربیره نوري راز راز ګډې غونډلې هم پیداکیدای شي تشبیهې لکه دښکارندوي په دې کړۍ کی :

هر یلو د ګلووز م دي لونلـــی ـــ ته وارا غله له ختــه کاروانـــونـــه

یا د حمید دغه لنډۍ :

سینه مې دیګ زړګی مې غوښې — اوښکې اوبه دي بیلتون اوربل کوینه

۴ ــ ګډلې (مختلطه) غونډ له :

ګډلې غونډله هغه ده چې دیوې پوستوې غونډلې په منځ کې یوه یا زیاتې خرمه غونډلې ورننوتې وي • دغه راز خرمه غونډلو ته منځپینې (معترضه) غونډلې ویل کیږي •

جوړښت یې داچې داري غونډلې ترا ینې ( مسندالیه ) یا د هغه ترکومې برخې وروسته د هماغه اینې یا برخې په اړیکې (ارتباط ) یوه یا زیاتې غونډلې په خرمه ډول راشي او بیا د اري غونډلې پاتې برخه ترټولو پای ته راووځي • په ګړنې پښتو کې ګډلې غونډلې ډیرې لږې کارول کیږي او هغه هم په دومره پیچلې بڼه نه • د اما نا چې نه اره غونډله پکې دومره ارته وي اونه پکې منځپینې تړوي زیاتې وي او هغه یوه هم دومره ارته نه وي که نه په غبرګو او ګډ وغونډلو اړول کیږي • دلته لومړي ګړنې اوبیا له لیکنې پښتو څخه دګډلو غونډلو بیلګې را اخلو :

۱) زه چې کورته ځم — رخصت اخلم •

۲) ځلمي چې پرون راغلی و — ما ونه لید •

۳) ما پروفیسور مورګن سیترنې — چې د اوروستي ځل کابل ته راغلی و — ونه لید

یا د غبرګې غونډلې په ډول : ما د اوروستي ځل پروفیسور مورګن سیترنې ونه لید — چې کابل ته راغلــــــی و •

۴) خوشال خټك — پخوا تردې چې په ګوالیارکې بندي شي — له اورنګ زیب سره په د اسې میړ انه — چې ساری یې نه درلود — جنګ وکړ •

د ایوه دوه اړخیزه ګډلې غونډله ده په دې توګه چې د لومړۍ اري غونډلې (خوشا ل خټك له اورنګ زیب سره په میړ انه جنګ وکړ ) دوه منځپینې غونډلې راغلي دي چې لومړۍ یې ( په ګوالیارکې بندي شي ) د اینې (خوشال خټك ) په کوالیارکې بندیکېد ل څرګندوي او دویمه یې

( ساري يې نه درلود ) د اېښونې (جنګ وکړ ) ديوه کړول (په ميړ انه) څرګندوي او يا وړي کوي .
(پخواتري — چې ) او (د داس — چې ) د دروازو ملوغونډ لو ترمنځ داړيکو ييکو دند ه
پرځاي کوي لومړي زماني اړيکي او دويم څرنګيز اړيکي .
د لته وينو چې داړې غونډ لې اېښې (خوشال ختک ) له خپل اېښونې (جنګ وکړ ) يوناد ود ه
لړيوالي لري نو په دې لاندې ډول دغه لړيوالي له منځه وړ لاي شو :
خوشال ختک — پخواتر دې چې په ګواليار کې بندي شي — له اورنګ زيب سره
په داسې ميړ انه جنګ وکړ — چې ساري يې نه درلود .
د ننني کاسيري نړۍ له غونډ و او اغيزو سره دغه راز غونډ لې په (( ليکنې )) پښتو
کې مخ پر زياتيدو او پيچلې کيدو دي لکه :
٥) ديونان نوميالي فيلسوف اپلاتون — چې په اسلامي نړۍ کې دلوي نامه
خاوند شو — دلويديزې نړۍ لومړي پوهاند دي — چې دژبې د بنسټ او څرنګوالي په باب يې
فلسفي څيړ نه کړ يده — اوله دې لامله دلويديزې نړۍ د ژبپوهنې پر انيستونې او دپر له غښتي
ګرامر برسيرونې ګڼل شويدي .
٦) ديونان ستري جنګي بوللې يا حماسې (( ايلياد او اوديسې )) چې سپيڅلې
ګڼل کيدي په خورا لرغونو زمانو کې په داسې يوه ژبه او سبک کښل شوي وې چې کابونابومه
(نامانوسه) شوې . ( الهام : وړمه — ٦ ګڼه ١٣٥١ ) .
په پنځمه ګډ لې غونډ له کې يواځې (ديونان نوميالي فيلسوف اپلاتـــــــــــــــون
ـــــــــــــــــــه اسلامي نړۍ کې دلوي نامه خاوند شو — دلويديزې
نړۍ لومړي پوهاند دي ) رښتينې ګډ لې غونډ له جوړ ه کړي — ځکه ديوې اړې ترمنځ يوي
منځپيښې غونډ لې ځاي نيولې دي — او وړيسې نوري دوې ورسره په څرګندنې اړتوښنــــې
بڼه د زياتې څرګندونې لپاره ملګري شوي دي .

## ګړنــــــــې یا اصطلاحـــــات (IDEOMS)

په غونډه له پوهه کې موتر او سه دوینا بشپړ یوونونه (واحدونه) یاپه بله ژبـــه غونډه لی وخیړلی اوبه ترڅ کې مو واړه واړه وېی غونډونه یا لغوي ګروپونه (فقري) چې دګړنو (ایدیمونو) په نامه بلل کیږي ۰

پیژندون (تعریــــــف):

یوه ګړنه یوداسې وېی غونډه دي چې دراز راز مانا لرونکو (دوویاډیرو) وییـــو او وییکو څخه منځ ته راغلی وي او په ژبه کې یونا اتکل کیدونکې لرغونتوب لري ۰ یوه ګړنه تل په جولیز ډول یوناشنونې او ټینګ یووالی نه وي خوبه مانیز ډول بوناشنونې غونډه (مجموع) ګڼل کیږي ۰ په بله وینا یوه ګړنه د داسې وییو غونډه دي چې په یوه غونډه له ییز یاپه بله وینا غونډالمپوهیز (نحوي) چاپیریال کې ځانته بیلا بیله جولیزه څپلواکی ساتلای شي ۰ د ساري په ډول له هر راز اوښتې راوښتې سره مخامخیدای شي خو په ګډه چې کومه یوه یواځینــې مانا منځ ته راوړي نه شنل کیدونکې مانا بلل کیږي دغسې یوه منځ ته راغلې ګډه مانا کله داسې وي چې د توکونو (اجزاوو) له بیلا بیلو مانا وو سره څه ناڅه ورته والی اواړیکې لري او دشنلو (تجزیه کیدلو) پروخبت ین ګډه مانا کورتـه له منځه نه ځي ــ دچاخبره یوځرک هومره یې لاالګیږي لکه برخه اخیستل ــ سربرڅنهې کیدل مقصد ته رسیدل ــ وروسته پاتیدل خوله پرخوله کیدل ــ پرمخ تلل ــ لاسته راوړل یاراوستل ــ له منځه وړل ۰۰۰ اونور ۰

په دویم ډول ګړنوکي ګډه مانا داسې وي چې دبیلا بیلو توکونو ماناوي یې ښکارندوي نه شي کولای اوله توتــه توته کیدو سره هر توک څپلې ګوښې اري مانا ته ورګرځي کټ مټ لکه دیوه کیمیایي ترنګ توکونه (دبساري په ډول هایدروجن او اکسیجن چې یوې هم ځانته دخپل ترنګ ((اوبو)) ښکارندوي نه شي کولای) بیلګې یې لکه: غوږ ډیول ــ زړه مړیدل ــ زړه خوړل زړه ماتیدل ــ زړه پخیدل ــ سپینې ښوییدل ــ شنیدل یا غوټه کیدل ــ پـزي ته رسیدل سترګې رییدل ــ لاس ترزنې کیناستل ــ لاس پرسرکیدل ــ لاس اخیستل اوداسې نوري کنایي او مجازي مانا ښندونکې ګړنې ۰

